Hughes, Thomas Patrick (ed.)

Kalīd-i Afghānī

# کلیدِ افغاني

یعني

منتخبات د نثر او د نظم د پښتو ژبي

مُرَتِّبْ

پادرِي هيوز صاحب ساکنِ پښاور


په مفيدِ عام مطبع کښ د لاهور پاهتمام

د منشِي گلاب سنگه اینډ سنز چاپ شه

دويمه ځله

سنه ۱۸۹۳ عيسوِي

# فهرست د کلیدِ افغانيِ

## نثر



## نظم



## ملحقات

کتاب

# گنجِ پښتو

تصنیف دَ مولوِي احمد

ساکن دَ تنکِي تپه دَ هشتنکر

# کتاب ګنج پښتو

## حکایت اول

په یو ځاي کښ یو عالم وه چه ډیري زړي چیړي ئې ټولي کړي وي او په پګړئِ خپلي کښ ئې نغښتلي وي ظاهره خلقو ته غټه پګړئِ ښکاریدله او په کښ ئې له زړو چیړو نه بل څه نه وُو + یو وار په وقت د لوي سحر کښ لا تیاره وَه چه مدرسي ته روان شه دپاره د دي چه له خلقو نه څه حاصل کا + ناګهانه په لار کښ یو غل ولاړ وه عالم ته ئې لاس ور واچاوه پګړئِ ئې ترِ ونښتوله + چه غل څه قدر لاړ شه نو عالم ور ته آواز وکړ ویل ئې چه ځوانَ دغه پګړئِ ولټوه که پس له لټولو ئې وړي نو بې شکَ ئې وړه ما در بخښلي دَه + غل په وړاندِ زغلیدهٔ لیکن هغه پګړئِ ئې وسپړودله که څه ګوري یو ګز کپړه په کښ مښلي شان

وخته نوري ښولي زري چيرري وي ✤ له قهر ئي هغه گز ښوکړه هم وغورځوله

عالم ته ئي ووِ چه خداي دِ خوار کړِ زه دِ په دي زړو چيرړو له کار

و ويستلم دوهره نه شرميږي چه په داسي تکيِ سره دِ زه وغلولم ✤ عالم

ويل چه ته ډيره ښه خبره کوي ليکن دا کار ستا په حق کښ لوي

نصيحت شه چه ته پوه شي چه دَ دنيا کارونه ښول دَ لباس او دَ تکيِ دي

او چه څوک په دنيا مينه کوي هم داسي به غليږي ✤

## حکايت دويم

يوه ورځ محمودِ غزنوي بادشاه دربار ته راووت يوه مرغلره ئي په

لاس کښ وه ✤ يو وزير له ئي ورکړه ور ته ئي ووِ چه دا مرغلره ستا

په فکر کښ دَ څومره قيمت لايقه دَه ✤ هغه ووِ چه صاحبَ ځما خو

يقين دي چه که په کروړونو روپيِ وِي هم دَ دي مرغلري قيمت به ترِ زيات

وِي ✤ بادشاه ور ته حکم وکړ چه باري ماته ئي کړِ ✤ وزير ووِ چه

دَ بادشاه له خزاني نه يوه پيسه کميږي نو ځما زړه ورسره کډوډ کيږيِ

بيا داسي مرغلره به څه رنګ ماتومَ ✤ بادشاه ووِ شاباش ته ډير

نيک خواه سړي يي نو ښه خلعت ئي وله ورکړ او مرغلره ئي ترِ واخستله ✤

بيا يُ يو ساعت سره نور مجلس کاوه ❊ بيا ئي هغه مرغلره يو بل امير له
ورکړله او ويل ئي چه وايه چه څومره قيمت به دا مرغلره لري ❊ هغه وِ چه
بادشاهَ مهربانَ څما په فکر کښ خو دَ نيمي بادشاهيِ قيمت لري ❊ بادشاه
ورته وِ چه باري مانه ئي کړه ❊ هغه وِ چه توبه قربان دِ شم داسي
مرغلره به هم څوک ماتوي هسِو قيمت ئي مه حسابوه ليکن داسي ښائيست
او رنګ او صفائي به بيا چرته پيدا شي څما لاس وله کله ورځي چه دا
مانه کړم دا خو دِ خداي طول عمر د بادشاه په خزانه کښ لري ❊
بادشاه هغه له هم خلعت ورکړ او مرغلره ئي تر واخستله ❊ داسي هر چا
له چه به ئي ورکوله هغه به هم په دغه ترتيب سره ځواب کاوه ❊
ناګهانه وارد اياز راغي چه اياز له ئي مرغلره ورکړه نو ورته ئي وِ چه
وايه تا ته ددي مرغلري قيمت څومره ښکاريږي ❊ هغه وِ چه څما صاحب
دا معلوم څيز دي چه ډير لوي قيمت لري نو زه به څه ووايم ❊ بيا بادشاه
ورته وِ چه مانه ئي کړه ❊ هغه دستي دوه کاڼي راواخستل په
يو ئي مرغلره کيښوه او بل ئي پرِ راوګرزاوه هغه مرغلره ئي پوټي پوټي
ذري ذري اوړه کړه ❊ چه دا کار ئي وکړ هلته اميرانو او وزيرانو

ور باندِ شور جوړ کړ ښتولو ووِ چه دومرهِ احمقي او داسي نادانِي او دا رنګ
بي‌وقوفي او دا شان بي‌باکي لکه تا چه وکړه هیڅوک به و نه کړي ❊ یو به
ویل چه قسم مِ دِ په خداي وِي که به دا کار کافر هم چرِي وکړي ❊
بل به ویل چه سوګند خورمَ که دا معامله دَ دښمن له لاسَ چرِي
شوي وِي ❊ بل به ویل چه خداي زده که لیونيَ هم په دي خبرهِ راضِي شِي ❊
هر یو له خپلَ خپلَ قهره سره مناسب خبري وکړي ❊ چه دوي سترِي
شولَ او شور ئي لکوتِي کم شه نو ایاز ورته وُ ویل چه اي امیرانو
اي سردارانو ستاسو عقل او پوهه او هوښیارتیا منم او په دي هم
قایل یم چه دا مرغلرهِ لایقه دَ ماتولو نه وَه لیکن زه بت‌پرست نه وم
چه په کاڼِي به مِ مینه کوله او دَ خاوند خبرهِ به مِ نه منله او که
رښتیا وایم خو مرغلره تاسو ماته کړله ځکه چه دَ بادشاه حکم له مرغلري
نه په زر ځلَ بهتر وه هغه تاسو رد کړ ❊ بادشاه له ایاز نه ډیر راضِي
شه او وزیرانو ته په غضب شه لیکن ایاز په ډیرو زارو او عرضونو
له بادشاه نه ددوي امان وغوښت ❊ نو بادشاه دوي وبخښل او
ایاز له ئي ډیر عزّت ورکړ ❊

# حکایت نهم

نقل دي چه یو دولتمند سړي وه ولې په هسې شان شوم وه چه له
ډیرې شومتیا نه به ئې غوښه نه خوړله او که چرې به ئې ډیره مینه ورته
وشوه نو له قصاب به ئې سلامت سر دَ چیلِي یا دَ ګډورِي په خدمتګار
بانډِ را وغوښت ÷ نو په هغه سر بِه ئې دَ غوښو مینه ماته کړله ÷
حاصل دا چه ټول عمر ئې دغه ګذران وه ÷ یوه ورځ ورته یو آشنا
ووِچه څه سبب دي چه په اوړِي ژمي ته بي له سرَ بله غوښه نه
خوري ÷ ده ووِ چه دا م ډیره خوښه دَه څکه ÷ هغه ووِ چه دا خبرِه نه صَم
نو که څه فایده په کښ وِي هغه راته ووایه ولې رښتیا وایه ستا دِ
قَسَم وِي چه دروغ وُ نه وایې ÷ ده وِچه دا حال خو ما هیچا ته نه وایه
لیکن چه تا سوګند راکړِ نو اوس به ئې درته ووایم خو ته ئې چا ته
مه وایه ÷ هغه ووِ چه څه له به ئې وایم ÷ ده وِچه رښتیا خبره دا ده
چه سر ډیر ښه څیز دي ÷ یو خو دا چه نرخ ئې معلوم وِي نوکر په کښ هیڅ نه
شي پټولي ÷ بل چه پخلي کوِي نو که نوره غوښه وِي خو دي ترِ په غلا
خوري شي او که سر پخوي نو تر نه شي خوړلي څکه چه که سترګه

پته کړي معلومیږي او که بل ځاي کم شي سري پر پوهیږي نو دا وسواس م هم نه پیدا کیږي چه څه به تر کم کړي + او بل داسي کار دي چه سر خوږم نو دَ ژبي بیل خوند وي او د سترګو بیله مزه وي او دَ غوږونو بل شان او دَ مغزو بل رنګ + داسي په هر ځاي کښ بیله بیله فائده ده نو قیمت پر لږ لګیږي او کار تر ډیر حاصلیږي + نو په دا سبب م سر خوښیږي او بله غوښه نه راوړم + هغه و چه قسم دَي چه ستا په شان شوم م تراوس نه دي لیدلي +

# حکایت څلورم

سړي له مناسب دي چه بي له دلیلَ په تش ګمان سره دَچا په ویل باندِ باور نه کوي او که کوي نو نقصان به ئي دَخان شي او خندا به ور پوري دَ جهان وي + لکه دَ هلکانو یو استاذ وه چه ډیر بدخوي وه او هلکان به ئي مدام وهل + نو هلکانو سره یو بل ته وویل چه ډیر تنګ شو راځئ چه څه علاج وکړو چه له دي بلا نه خلاص شو + او په دوی کښ یو مشر وه هغه وِوُ چه که تاسو خما خبره منئ نو بي شک علاج به ئي وشي + هلکانو ورته وویل چه هر څه چه ته وایي هغه

څمونږ قبول دِي ✤ ده وُوِ چه مصلحت دا دَي چه صبا له سبق له ورشُو
نو هر يو به استاذ ته وايُو چه استاذَ خير دِ وِي رنګ دِ زيړ دي جوړ نه يي
که څه سبب دي بيا نو رڅه مه وايئِ ✤ چه صبا شه هلکان به مدرسي له
تلل او هر يو به استاذ ته ويل چه استاذَ خير دِ وِي رنګ دِ زيړ دي ✤
استاذ به ورته ويل چه هيڅ نشته زه خوجک جوړ يم ✤ ليکن په زړه کښ
به ئې لکوټي وسواس پيدا کيده ✤ ورستي له ټولو نه هغه مشر هلک راغي
چه استاذ ته ئې کتاب وغوړاوه په تلوار سره ئې بيا پورته کړ ✤ استاذ
ورته ويل چه هلکَ ولي دِ کتاب پورته کړ ✤ هلک ورته ويل چه صاحبَ
هرڅوک خپل خپل مطلب کوِي او انصاف په هيچا کښ نشته او نه زړه سوِي
څوک لرِي ته داسي ناجوړَ يي چه زه دِ خراب حال او زيړ رنګ ته وګورم نو
زړه مِ خوږ شِي څما سبق دِ هيڅرِي ونه شِي خو چه ته جوړ شي نو دغه څما
سبق سبق دَي ✤ استاذ اوچت پاڅيده او په ډير قهر سره کورته روان شه
ښځي ته ئې آواز وکړ ويل ئې چه راشَه دروازه لري کړه ✤ هغه په خوشحالئِ
راغله دروازه ئې لري کړله څه ګورِي چه استاذ غمجن زهير ولاړ دي ✤
ښځي ورته ويل چه خير دِ وِي ولي داسي بي وقتَ له مدرسي نه راغلي ✤

استاذ ورته ویل چه ولې ته ښنده یې نه وینې چه دا څما څه حال دی دَ پردو
خلقو را باندِ زره سوی پیدا شه او ستا دومره کینه او بدنیتی ده چه په کور
کښې بې او څما دَ حال پوښتنه دِ چرې کړې نه دَه او نه دِ دا قدر راته ویلې دِی
چه دا ولې ÷ هغې ورته ویل چه زه څه ووایم ماته خو جوره ښکاریږی ÷
هغه ووِ چه ای دښمنی ښځی په دی دِ لا هم خوا یځه نه دَه ÷ هغې وِ
چه ته وار وکړه زه به آئینه راوړم ته خپل مخ په کښې وګوره هیڅ نشته
وسواس څه له کوی ÷ استاذ ویل چه څَه ته ورکه شه ستا آئینه دِ ورکه شي
لکه چه ته یې داسي به ستا آئینه وِی مه یُې راوړه نه یُې ګورم خو زر شَه
کټ راته جوړ کړه چه پرِ پریوزم ÷ هغې لا په کښې څه فکر کاوه ده بیا قهر
ورته وکړ او ویل یُې چه ډیری خیرې راته مه کوه خو کټ راته سنبال کړه ÷
هغې ورته کټ واچاوه بیچاوړه یُې پرِ وغوړوله ÷ استاذ پرِ دَپاسَ پریوت
او هلکانو ته یُې ویل چه دلته څمونږ کره سبق وایئِ ÷ هلکان ناست
وُو سبق یُې وایه لیکن حیران شول ټولو ویل چه دا څه وُو او څه وشو
ربه دومره وشَه چه نور پرِ نه کیږِی او له قیدَ مونږ خلاص نه
شولُو ÷ اوس بله حیله په کار دَه چه له بندَ خلاص شُو هغه مشر هلک

ورنه وُوِ چه باري داسي وکړئِ چه ناسي ټوّل زورَ زورَ په چغو چغو سره
سبق شروع کړئِ ÷ خو چه دوي شور ونښلاوه او زوګ ئې جوړ کړ نو
هغه مشر هلک ورنه وويل چه بي انصافو ولي دومره شور کوئِ تاسو نه
پوهيږئِ چه په داسي شور کولو دَ استاذ سرخوګيږي ÷ استاذ ويل چه رښتيا
وايي لاړ شئِ شور مه کوئِ ټوّل آزاد يئِ ÷ هلکان په خوشحالئِ سره لاړل په
لارو او په کوڅو کښ به ئې مستي کوله ÷ چه يو څو ورځي تيري شوي نو دغو
هلکانو ته ميندو ووَيل چه بي‌عقلو دا مُده دَ علم زده کولو ده او تاسو
ئې عبث په خوشو تيروئِ ÷ هغو وُوِ چه څمونږ څه تقصير دي چه استاذ
ناجوړَ دي نو مونږ چا څخه سبق وُوايُو ÷ ميندو ئې وويل چه خير صباح
به مونږ لاړي شُو چه حال ئې زدَه کړُو چه ستاسو رښتيا او دروغ
معلوم شي ÷ چه صباح شه دَ هلکانو ميندي دَ استاذ پوښتني له رواني
شولي ÷ چه ورکره ورغللي څه ګوري چه استاذ پروت دي دوه دري برستني
پرِ دپاسَ پرتي دِي سر ترِ پټنو په خولو کښ لُونْد دي په واي واي سره ناري
او فريادونه کوِي ÷ دَدوي وار خطا شه ټولو وويل چه استاذَ خير دِ
وِي دا څه چل دي مونږ خو هډو خبر شوي نه يوُ ÷ استاذ ويل چه زه

هم پوه شوي نه وم ځما فکر نه وه ليکن په کښ سخته قصه وَه که چري
له اولَ پوه شوي وي نو خواه څه علاج به ئي په آسانئِ سره شوي وه
مګر اوس دِ هم خداي خير کړي خو خبره ګرانه دَه ✣ دَ هلکانو ميندو دعا
کوله او ويل ئي چه استاذَ خداي دِ روغ کړه ✣ استاذ ويل چه آمين تاسو
سره دِ خداي ښه شِي ✣ دَ هلکانو ميندي لاړلي او استاذ په کټ کښ پاتي
شه ✣ بيا چه څو ورځي تيري شوي نو دَ هلکانو له خولي نه دا خبره مشهوره
شوه چه استاذ د دوي په ټګئِ او په دروغو ويلو ناجوړ شوي دي ✣ نو
يو بل ورته ووِ چه کم بختو سړي به مړ شِي او خون به ئي ستاسو په غاړه
شِي فکر وکړئِ اوس ئي څه علاج پکار دي چه جوړ شِي ✣ دَ هلکانو هم
په زړه کښ رحم پيدا شه هغه مشر ته ئي ووِ چه راشئِ چه څه علاج
ئي وکړو ✣ هغه ورته ووِيل چه راځئِ چه يو يو ورځو ولي هر يو چه ورځي
نو ورته دِ وائِي چه استاذَ اوس خو جوړ يي که خير وِي داسي هر هلک به
ورته او استاذ ته به ئي ويل چه استاذَ اوس خو جوړ يي که خير وِي ✣ بيا
په واړو پسي ورستي هغه مشر راغي چه و ئي کتل نو ويل ئي چه استاذَ
شکر دي اوس خو دِ رنګ جوړ دي ليکن لکوټي ګرزيدل تا له په کار دِي

څکه چه سړي له رنځ روغ شي نو په يوځاي ناسته هم وله ښه نه دَه
اوس پاڅيدل پکار دي چه بهر لاړ شو يوځوا بل خوا وګرزو ❊
استاذ پاڅيد هلک ورسره دي بهر روان شول ❊ چه يو سړي
به وليد ورته به ئي ويل چه استاذ په خير پاڅيدلي ❊ بل به ويل چه
شکر دي چه روغ شوي چه څوک به مخي له ورتلل مبارک شه مبارک
شه به ئي ورته ويل او استاذ به خوشحاليده او هلک به پټ پټ
خندل ❊ بيا ئي نه رنځ وه نه ئي بيماري وه خير خيريت وه ❊

# حکايت پنځم

دَ کم‌عقل سړي دوستي له دښمني سره برابره وي ❊ لکه يو بادشاه
شاهين دَ ښکار ډپاره ساتلي وه او ډير فهم به ئي ورباندِ کاوه ❊ ناګهانه
يوه ورځ والوت او دَ يوې بوډيِ په کور کښ ولګيده ❊ بوډيِ زر لاس ور
واچاوه شاهين ئي ونيوه چه ورته ئي وکتل نو منګوله ئي ورته کږه ښکاره
شوله ❊ نو بوډيِ وويل چه هيڅ هيڅ عاجز په دي منګوله باندِ به ته څنګه
خوراک کوي ❊ جوړ چاره ئي را واخستله پاسنئِ منګوله خو ئي ورته
پري کړله ❊ چه ئي ښکته او پورته منګوله يو شان برابره کړله نو وئي

ويل چه وشوه اوس به پر داني اخستلي شي ÷ چه پښو ته ئي نظر وکړ
دوړه ښنګلي ئي ورنه ښکاره شولي ÷ ويي ويل چه اي غريب ستا له
نصيب دومره څوک نه وُو چه ئي ستا نوکونه پريکړي وي ته خو په پښو
شل يي ددي نوکونو له سبب ÷ نو زر زر ئي نوکونه هم ورنه وتراشل ÷
دي غريبي خود مينه کوله او دَ هغه عاجز ئي بخ وکښه ÷ بادشاه
خبر شه چه شاهين الوتلي دي نو حکم ئي وکړ چه که چا راوست انعام
به ورکړم ÷ چه خلقو لتاوه د بوډئِ کره ئي بياموند ÷ جوړ بادشاه
له ئي بوت او حال ئي دَ بوډئِ دَ ميني او دَ مدار ورته بيان کړ ÷
چه بادشاه شاهين ته وکتل ډير خپه شه ولي نو ئي هيڅ ونه ويل مګر
حکم ئي وکړ چه دي بهر وباسئِ او ډنډوره وکړزوئِ چه دا به ئي حال وي
چه څوک په هغه چا ځينبري چه په قدر ئي نه پوهيږي ÷

اي يارانو واوره واورئِ دا بيان    چه دوه ظلمَ مقرّر دي په جهان
يا نادان آشنا په يار کوي ستم    يا دښمن رسوي خلقو ته ماتم

## حکايت شپږم

زورآور له ښائي چه په کمزوري باندِ زور نه کوي اګرچه کار ئي خرابيږي ÷

لکه چه دَ روم د ملک بادشاه نوشیروان بادشاه ته قاصد لیږلي وه ✦
چه دلبار ته ورسید څه گوري چه یوه لویه ماڼۍ ده بادشاه په کښ
په تخت ناست دي او نور بادشاهان او امیران او وزیران ورته په کرسو
ناست دي ✦ لیکن چه قاصد تماشه وکړله یو ځاي ورته په هغې ماڼۍ کښ
کوږ ښکاره شه ✦ نو له یو سړي نه ئې پوښتنه وکړله چه دا ځاي ولي کوږ
دي ✦ هغه ورته وویل چه دا دَ یوي بوډۍ کور وه په هغه وقت کښ
چه بادشاه دا ماڼۍ جوړوله نو هغي بوډۍ ته ئې وویل چه
دا کور په ما خرڅ کړه مگر دَ هغي رضا نه وَه او په زور سره
خود بادشاه دا کار نه کاوه ✦ نو په دغه سبب سره دا ځاي په دي
ماڼۍ کښ کوږ پاتې شوي دي ✦ قاصد ؤویل چه رښتیا خبره دا ده
چه دا کوږوالي ډیر ښه دي له هغه سموالي نه چه په ظلم سره شوي وي
او حق دَ انصاف دا دي چه دا کار نه په ورښتې زمانه کښ چا ولي دي
او نه عِر ورستو گمان کیږي چه به څوک له بادشاهانو نه وکړي ✦ بادشاه
چه دا خبري دَ قاصد واوریدلي ډیر خوشحال شه او انعام ئې وله
ورکړ او په مدار او په عزّت ئې رخصت کړ ✦

# حکایت اوم

د یو شیخ په خلوت‌خانه کښې یو مسافر میلمه پیښ شه ÷ نو چه وقت
د خوراک شه هغه شیخ کور ته لاړ شه او یو څلور ډوډئ ئې راوړلې د هغه
مسافر ته ئې کېښودلې ÷ بیا په تلوار لاړ شه چه وله پېتي راوړي چه شیخ
پېتي راوړله مسافر ډوډئ خوړلې وې ÷ شیخ بیا په تلوار لاړ شه څلور
ډوډئ ئې نورې را وزغلولې ÷ چه دې را رسیده مسافر پېتي توله کوټلې
وه ÷ شیخ بیا پېتئ له لاړ شه چه راته هغه ډوډئ خلاصه کړې وه ÷
حاصل دا دئ چه لس ځلَ شیخ کور ته لاړ شه او چه یو څیز به ئې
راوړ بل به مسافر خلاص کړې وه ÷ بیا شیخ ورته وویل چه ځوانَ
خبر دِ وي چرته ځې ÷ مسافر ورته یو ځاي یاد کړ ویل ئې چه صاحبَ
فلاني ځاي ته ځم ÷ بیا شیخ ورته ویل چه څه مطلب دِ دي هلته په څه
پسې ځې ÷ هغه ویل چه اوریدلي م دي چه په هغه ځاي کښې یو لوي
طبیب دي دَ هغه دَ لیدو دپاره ځم ÷ شیخ ورته وُوِ چه څه ناجوړتیا
دِ دَه چه طبیب له ورځې ÷ مسافر وُوِ چه غلي ته م ډیره مینه نه کیږي
نو وایم که ورشم او هغه ماته څه داروُ راکړي چه خوراک ته م مینه

پیدا شي ÷ شیخ ورته ویل چه ډیره ښه ده خدای دِ ستا مطلب پوره
کړي خو ځما هم دَ خدای دپاره تا ته یو حاجت شته دي ÷ مسافر ویل
چه صاحبَ څه حاجت دي ÷ شیخ ویل چه ته جوړ شي او کار دِ
وُشي نو بیا په دي لار مه راځَه په بله لار لاړ شَه ÷

## حکایت اتم

ولِي شوي دي چه یو بزرګ په غاره دَ یوي ولِي ناست وه او په اوبو دَ
صبر لي لاس له ګنده ګیرئ دَ دنیا نه وینځلي وُو ÷ یو تپوخ په هوا
په هغه ځاي باندِ تیریده یو مرکوري لي له پنجو نه خلاص شه او
دَ وراندِ دَ بزرګ ولویده ÷ بزرګ په ډیره مینه سره په زړوکي کښې ونغښت
اوخپل کور ته لي وړ بیا لي دَ ځان سره وُویل چه نه بایده چه د کور
خلق په لیدلو د دي مرکوري خپه شي ÷ نو په هغه ځاي کښې دعا لي
وکړله چه دا مرکوري جنئ شوي هم په هغه شان کار وشه لکه چه
دده مطلب وه یعني په هسي شان ښائسته جنئ ترِ جوړه شوه چه
نمر د انګو لي اور دَ غیرت په درمند دَ میاشتي پوري کاوه او نورو
زلفو لي لوکي له زړه د شپي توري نه اوچتاوه ÷ بزرګ په هغه ساعت

يو مريد را وغوښت او دغه جنيۍ ِ لي ورته وسپارله او ورته ئي ووېل
چه ددې پالنه او نما نځنه په ښه شان سره کوه خود چه لويه شي پس
له هغه به ئي نور مصلحت کوُو ✤ بيا چه څو مُده پس جنيۍ ِ لويه شوله
نو هغه بزرگ را وغوښتله او ورته ئي و ويل چه اي جنيۍ ِ ستا خو
ميړوک خپلوان نشته نو اوس اختيار ستا دي ووايه چه دچا سره ستا نکاح
وکړم ✤ جنيۍ ِ ورته ووېل چه هسي څښتن ما له وګوره چه په قوت او په
مرتبه کښ ئي سيال چرته نه وِي ✤ بزرگ ورته وُوِ چه داسي لوي او
زورآور خو راته څوک نه ښکاريږي مګر يو نمر که وِي نو به وِي ✤ جنيۍ ِ
ووېل چه ډېره ښه ده ✤ صباح وختي چه نمر را وخوت بزرگ ورته
ودريده او وئي ويل چه اي نمرَ دا جنيۍ ِ زورآور څښتن غواړي نو مونږ
زورآور په خپل فکر کښ ته مقرر کړي يي نو ددي خبري به څه مصلحت
وِي ✤ نمر ورته په جواب کښ وُوِ چه زه به تاسو ته له خپلَ ځانَ زورآور
زبات وښيم ✤ بزرگ ورته وُوِ چه څوک دي ✤ نمر ورته وُوِ چه وريځ دَه
څکه چه لکوتي وريځ راښکاره شي نو څما مخ پټ کاندِ ✤ بزرگ وريځي
ته ورانډِ شه چه حال ئي ورته ووايه نو هغي ورته ووېل چه که د

زور خبره کوئ خو له ما نه باد غالب دَي څکه چه په ما بانذِ راشِي نو هر
طرف ته چه ځِي هم هغه طرف ته مِ زغلوِي * بزرگ باد ته خپله مدّعیٰ
عرض کړله * باد ورته وويل چه څما به څه قوّت او طاقت وِي که څه
دي خو غر دي څکه چه په ځاي خپل بانذِ ولاړ دَي او پښي ئي په
خپل مقام بانذِ محکمي لګولي دِي او ما غندِ که په زرګونو جمع شِي هم
له ځايَ ئي نه شِي خوځولي * بزرګ غره له ور روان شه چه حال ئي ور
ته ووايه هغه ورته په ځواب کښ وويل چه انصاف دا دَي چه
زور او غلَبَه او قوّت او دبدبه که څه وِي خو دَ مږو به وِي څکه چه
څما زړه ئي زخمِي او سوري سوري کړ مګر زه ور نه نه تبتيدلي
شم او نه ئي له ځانَ بهر وکښلي شم * بزرګ ورغي يو مږکوري ئي وموند
ورته ئي واړه قصه تيره کړله * چه هغه واوريدله ورته ئي وويل چه
څما هم دَ ډيري مُدي شوق دي چه چړته واده مِ وکړلي ليکن ما له له
خپلَ قومَ جنيئِ پکار ده دغه جنيئِ به زه څه کړم * جنيئِ وويل چه دا
خو آسان کار دَي څکه چه دا شيخ صاحب که اوس دعا وکړِي نو زه به
ستا په شان شم * بزرګ په هغه ځاي کښ دعا وکړله جنيئِ بيا

مېږکوري شوله او دَ مېږکوړي سره لاړله ❊

چه هر شئ رجوع خپل اصل وته کانډِ    دِي لازم چه سړي ځان خاوري کا وړانډِ

# حکایت نهم

هسي وېلي کېږي چه په يو ځاي کښِ دوه تنَ سړيِ وُو چه سره يو ځاي ناست وُو ډوډيِ ئي خوړله ❊ مګر يو سړيِ څخه پنځه ډوډيِ وي او بل څخه دري وې ❊ ناګهانه يو ځوان په لاري تيرېده چه دَ دوي خواته نژدي شه السّلام عليکم ئي ووېل دوي وَوِ وعليکم السّلام ځوانَ راځه څمونږ سره ډوډئ وخوره ❊ هغه جوړ ور سره کښېناست او ډوډيَ ئي ور سره وخوړله چه له ډوډئ خوړلو نه وزګار شول نو هغه دَ لاري سړيِ دَ ډوډو خاوندانو ته اته روپئِ پرېښودي او ورته ئي وُوِچه واخلئِ دا ستاسو دَ ډوډئِ بدل دَئ ❊ چه دوي روپئ واخستلې نو دواړه په جنګړه شول دَ پنځه و ډوډو خاوند ووېل چه پنځه روپئِ څما شوي او دري ستا شوي ځکه چه څما پنځه ډوډئِ وي او ستا دري وي ❊ او دَ دريِ ډوډو خاوند وَوِچه دا روپئِ نيمي ستا دِي او نيمي څما دي ❊ چه جنګړه ئي زياته شوله او يو دَ بل په وېل نه راضِي کېده نو په هغه زمانه کښ يو عادل ايماندار حاکم

وه هغه له ورغلل چه حال خپل ورته دواړو و وایه نو هغه حاکم هغه د
دري ډوډو خاوند ته و ویل چه څوانَ داځوان تا له په خوښه دري روپۍ
درکوي نو ته ئي ولي نه آخلي + هغه وویل چه صاحبَ زه په دي راضي نه
یم زه خو خپل حق غواړم + هغه حاکم ورته وُو چه ته خپل حق غواړي
نو ستا حق یوه روپۍ کیږي او دري بل اووه روپۍ + سړي فریاد ونبنلاوه
او وئي ویل چه صاحبَ څنګه څما یوه روپۍ کیږي زه په دري هم نه
راضي کیږم او ته لا له یوه راکوي + حاکم ورته وُو چه تاسو دري تنَ ويِ
او ډوډيِ اته وي او هره یوه ډوډۍ چه دري دري څایَ شي نو
څلیریشت حصّي ترِ جوړیږي او تاسو چه برابر خوړلي وي نو اته اته حصّي
دَ سړي په سر راځي + نو ستا دَ دري ډوډوڼه حصي شوي اته تا
وخوړلي او یوه پاتي شوه او دده دَ پنځهٔ ډوډو پنځلس حصي شوي اته
ده وخوړلي او اووه پاتي شولي + نو چه دي سړي اته حصّي خوړلي دِي نو
ستا په کښ یوه حصه لاړه اودده اوه لاړلي نو ستا یوه روپۍ رسیږي او
دده اووه رسیږي نو ته پخپله هم فکر وکړه چه څنګه حساب جوړیږي +
نو هغه سړي وویل چه بي شکَ اوس پوه شوم او په خپل حق راضي شوم

# حکایت لسم

په یو ځاي کښ یوه چرچنړه په یو دام باندِ پېښه شوله + نو ورته ئې وُوِ چه څه سبب دي چه له خلقو جدا پروت يي + دام ويل چه په گوښه کښ امان او سلامت راته ښکاريږي + چرچنړي ويل چه په خاورو کښ ولي پروت يي + دام ويل چه عاجزي کوم ځکه چه لوئِ خداي پاک له مناسبه ده + چرچنړي ورته وُوِ چه دا ولي دومره خوار يي + دام ويل چه دا په ډير عبادت کولو سره + چرچنړي وِ چه دا پړي دِ ولي په غاړه کښ آچولي دي + دام ويل چه دَ فقيريِّ جامه هم دا قدر بس دَه + چرچنړي وِ چه دا همسا څه کوي + دام ويل چه په دي تکيه کوم + چرچنړي وِ چه داغنم درته څه له پراته دِي + دام ويل چه دا ځما له خوراکَ نيري دِي که چرته وږي راه‌روي فقير پېښ شي نو هغه له به ئي ورکړم + چرچنړي وِ چه بل به داسي محتاج څوک وِي لکه چه زه يم ما له ئي راکړه + دام ويل چه شل ځلَ خو راشَه له نورو خلقو نه ته ښَه يي چه ئي وخوري + چرچنړه ورغله خو چه مښوکه ئي داني له وروړله نو په غاړه پوري ئي دستي دام ونښت + چرچنړي وِ چه اي بدخويَ مکاره تَنگ چل‌بازَ داسي هم

خوَر

څوک کوي لکه چه تا وکړل ÷ دي لا دا وَيل چه ښکارِي راغي او دا ئي ووَيله ÷
چرچڼړي خان سره وَيل چه هوښيارانو ښتيا وَيلي دِي چه
هر چا چه زړه ورتوب وکړ پښيمان به شي او هر څوک چه وويريده
سلامت به پاتي شي اوس حيرانه يم چه په څه به خلاصه شم ÷ يو ساعت
ئي فکر له خان سره وکړ نو ښکارِي ته ئي مخ را وګرزاوه او ور ته ئي
وَوِ چه اي سړيَ يو څو خبري له ما نه واوره اميد دي چه به تا ته
فايده وُرسَوِي بيا له ما سره هر څه چه کوي هغه کوه ÷ چه ښکارِي له
چرچڼړي نه دا خبره واوريده يو ساعت حيران شه بيا ئي وَيل چه وُوايه که
نه ÷ چرچڼړي وِ چه نه خو پوهيږي چه په ما باندِ نه څوک ښرِيږي او نه
مړيږي نو که زه دِ خوښه يم خو ما وخوره او که د حکمت خبري دِ
خوښيږي نو ما پريږده چه يوه خبره ستا په لاس کښ وکړم او يوه د دي
وُني په ښخ کښ وکړم او يوه د دي وُني په سر باندِ وکړم ÷ ښکارِي وِ چه
ډيره ښه دَه نو ئي پرېښوده وِ چه وُوايه ÷ چرچڼړي وَيل چه يوه خو دا
دَه چه څو چه ژوندی يي نو په شوِي کار پسي پښيماني مه کوه ÷ ښکارِي په
زړه کښ وِ چه څه عجيبه خبره ئي وکړه ÷ چرچڼړه لاړه د وُني په ښخ کښ

کښېناستلهٔ بيائي وِ چه دويمه دا دَه چه يو څيز نه وينې نو باور پرِ مه کوه ❊ چه دائي وُويل نو بيا لاړه د وُنې سر ته وختله او ورئي ويل چه اې سړيَ خدا په جوړه کښ شل ښې روپۍ تول دَوه مرغلرې وې چه هغه ستا او ستا د اولاد بس وې ولې نصيب دِ په کښ نه وه ❊ دې په زړاشه ډير ارمان ئي کاوه لاسونه ئي مروړل بيائيَ وِ چه خير هغه خو لاړلې مگر هغه دريمه خبره خو وُوايه ❊ هغي وِ چه په ورېنو دواړو خبرو دِ کوم عمل وکړ چه دريمه هم غواړې ❊ ما در ته ويل چه په شوې کار پسې پښيمانې مه کوه ❊ او چه يو څيز نه وِې نو باور پرِ مه کړه ❊ او چه ما ويل چه خدا په جوړه کښ دوسره درني مرغلرې دِې نو تا پرِ باور وکړ ❊ نه دومره نه پوهيږې چه زه د بڼرو سره هم په تول به د لسو روپو سره برابره نه شم ❊ او بيا دومره ارمان او ژړا دِ وکړل چه نور پرِ نه کيږي ❊ دا ئي وُويل بيا لاړه والوتله او بنکارِي پاتي شهٔ ❊

# حکايت يُولسم

که څوک ډير کوشش وکړي خو د چغلي خور له فساده نه خلاص نه شي ❊ لکه يو سړي وه چه مريي ئي خرخاوه ❊ يو خوان وله راغې ويل ئي چه دا

مرېي د خرڅ دي * هغه خاوند ئي ووېل چه هو د خرڅ دي * هغه بيا
ووې چه څه عيب نقصان په کښې شته او که نشته * خاوند ئي وېل چه
بل هيڅ عيب په کښ نشته مګر يو عيب لري که د هغه عيب سره
د خوښ ورې خو ئي واخله او که نه وي نو ئي پرېږده * هغه ځوان وېل چه
هغه کوم عيب دي نه ئي ما ته معلوم کړه چه زه بيا پوه شم نو که له لاسه
م کيږي له هغه عيب به ځان ساتم * خاوند ئي وېل چه چغلي خور دي
بي شنه ډېره چغلي کوي چه سړي ور ته حيران پاتې شي * هغه وېل چه دا
هيڅ خبره نه ده سړي به د ده په خبره عمل نه کوي نور څه دي *
مطلب دا دي چه قيمت ئي ورکړ مرېي ئي تر واخست کور ته ئي بوت
او په زړه کښې ئي محکم نيت وکړ چه د ده په وېل به باور نه کوم *
چه څو ورځې تېرې شوې نو هغه مرېي راغي او خاوند ته ئي ووېل چه خبر
شه بي بي د مړګ مصلحت کړې دي تا وژني او بل سړي په نکاح
اخلي * خاوند ئي وېل چه ته چه رنګ پوه شوي يي * مرېي ووې چه زه پوه
شوي يم او که ستا باور نه کيږي نو ته ور ته ځان اوده کړه چه حال در
ته معلوم شي چه زه رښتيا وايم که دروغ وايم * بيا ښځې له وراغي ور ته

ئې ويل چه بي بي خبر شه ښښتن دِ تاله طلاق درکړي او بله ښځه کړي ✦ ښځي چه دا خبره واوريدله ډيره خپه شوله ✦ ده ورته ويل چه ولی خپه کيږې که ستا خوښيږي نو ماله يو دري ويښته د ده د زني د لاندِ راوړه چه زه ئې دم کړم نو د ښښتن به تا سره مينه ډيره پيدا شي ✦ هغی ويل چه ډيره ښه خبره دَه ✦ چه شپه شوه سوی کورته لاړ شه ښخان ئې په کټ کښې اوده کړ او تماشه ئې کوله چه ښه پيښيږي چه د ښځي گمان وُ شه چه دی اوده دی نو دِ ويښتو پريکولو د پاره ور نزدي شوله چه زني له ئې لاس وروړ د ښوان يقين وشه چه ما وژني جوړ په تلوار پاڅيد توره ئې واخستله او ښځه عاجزه ئې مړه کړله ✦ مريي دسِتي ور دوکړ د ښځي ورونړو ته ئې وُويل چه زر راشئ ستاسو خور ئې بي گناه مړه کړله ✦ هغو توري را واخستلي په تلوار راغلل او ښوان ئې مړ کړ دواړه عاجزان د مريي په چُغلۍ سره مَړه شول ✦

# حکايت دوه لسم

يو بادشاه ډير ښورب وه او وجود ئې بي شانَ غټ وه هسي حد ته رسيدلي وه چه له هَر کارَ وتلي وه ✦ نو طبيبان ئې جمع کړل دپاره د دي چه ښوک

يُ علاج وکړِي که غوښه يُ څه قدر کمه شِي ٭ که هر چا به علاج کاوه د بادشاه غوښه به زياتيدله او وجود به يُ غټيده ٭ آخر يو هوښيار طبيب پيښ شه چه د بادشاه لاس يُ وينو ور نه يُ عرض وکړ چه که د بادشاه مهربان خوښه وِي نو زه به په علمِ نجوم کښ وُگورم هر قسم دارُو چه د طبيعت سره برابر راغلل هغه به بادشاه له ور کړم ٭ بادشاه وُوِ چه ډيره ښه ده لاړ شه کتابونه د نجوم تول وگوره چه تا ته ښه ښکاره شِي هغه دارُو ما له راکړه ٭ طبيب لاړ شه صبا له راغي عرض يُ وکړ چه د بادشاه مهربان دارُو موقوف دِي ٭ بادشاه وُوِ چه څه سبب دي ولې څما دارُو موقوف دِي ٭ طبيب وُويل چه په کتاب کښ وايِي چه څلويښت ورځي د بادشاه ژوندون باقِي دي پس له هغه به مړ شِي ٭ بادشاه ډير په قهر شه اوويل يُ چه دارُو موقوف دِي ولې دا طبيب بند کړيُ که چرې په دې مده کښ زه مړ نه شوم نو دې به مړ کړم ٭ طبيب يُ بند کړ او بادشاه د مرگ په فکر کښ شه شپه او ورځ به يُ خفقان کاوه او خپلوانو دوستانو به ور سره ژړل ٭ چه څلويښت ورځي تيرې شوې د بادشاه زيړ رنگ را ختلې وه غوښه يُ اوبه شوې وَه خو چه د غوښي بار تر کم شه نو صورت يُ

برابر سم شه * بیا طبیب ئې را وباله ور ته ئې ویل چه اوس دِ وژنم تا ولي دومره دروغ ویل * طبیب وُوِ څکه چه د بادشاه علاج را ته په بل څیز کښ نه معلومېده * بادشاه ډېر خوشحالَ شه او انعام او خلعت ئې ډېر ورکړه *

# حکایت دیارلسم

ویلي شوي دي چه یو سړي په رنګ ډېر ناکارَ وه او ښځه ئې په صورت ډېره ښائیسته وَه چه د هغې ښځې په شان ښځه په هغَه زمانه کښ نه وه * نو هغې ښځې یوه ورځ هغَه خپل څښتن ته وُوِ چه په قیامت کښ به زه او ته دواړه په جنّت کښ یُو * څښتن ور ته وُوِ چه ته په کوم دلیل سره دا خبره کوې * هغې ور ته وُوِ په دې دلیل سره چه زه ستا ښځه یم او ته څما څښتن یې * هغه ور ته وُوِ چه په دا څه وشُو هر څوک سره ښځې څښتنان دي نو دا به ټول جنتیان وِي څه * هغې ویل چه ته پوه نه شوې زه داسې نه وایم چه ټولې ښځې او خاوندان به جنتیان وِي بلکه زه خپل ځان او تا یادَوم په دا سبب چه زه ستا په ناکارَ شکل باندِ صبر کوُم او ته څما په ښائیسته صورت باندِ شکر کوې او جنت له یا هغَه ځي چه شکر کوِي یا هغَه ځي چه صبر کوِي *

حکایت څوارلسم

# حکایت څوارلسم

هوښیار له مناسب دِي چه په زارۍ د دښمنانو نه غلبېږي او که نه وِي نو په بلا کښ به پرېوزي ؞ لکه یو سړي په اوښ سور وه په لار تلو ناګهانه یو ځاي ته ورسیده چه هلته په ځنګل باندِ اور لګیدلي وه او یو لوي مار په هغه ځاي کښ بند شوي وه چه په هیڅ شان ئې لار د خلاصیدو نه موندله ؞ چه دا سړي ئې ولیده ډېر فریاد او زارۍ ئې ور ته وکړل او وئې ویل چه که ما له دې اورَ وباسي نو نهایت مهربانۍ به وِي ؞ سړِي په زړه کښ فکر وکړ او وئې ویل چه مار خو بې شکَ د سړو دښمن دي مګر نن ورځ ډېر عاجز دي نو بهتره خبره دا دَه چه له دې اورَ ئې وباسم جوړ توبره ئې ور څوړنده کړله او مار په توبره کښ کښېناست سواره توبره راکښله مار ئې له هغه ځايَ بهر وکښنه ؞ بیا ئې د توبرې خوله پرانستله او مار ته ئې وُویل چه اوس ورځه له غمَ خلاص شوي مګر پس له دي څوک مه آزاروه ؞ مار وویل چه څو تا او ستا دا اوښ و نه چیچم همره به لاړ نه شم ؞ سړِي ور ته وُویل چه ما خو له تا سره بد کړي نه وُو چه ته اوس له ما سره داسي کوي ؞ مار وویل چه بې شکَ تا

بنه کړي وُو خو بي ځايَ وُو ځکه چه ځمونږ او ستاسو سره دښمني
پخوانئِ دَه نو ځما سره بنه کول ستا د ځان سره بد کول دِي ٭ سواره وُوِ
چه د نيکئ په ځاي بدِي په هيڅ مذهب کښ روا نه دَه ٭ مار ور ته وُوِ
چه زه هم ستاسو په دستور باندِ عمل کوم او تاسو خود دنيکئ په ځاي
بدِي هميشه کوئ ٭ سواره وويل چه دا خبره به هيڅري ثابته نه کړي او که
په دي خبره دِ شاهدان تير کړل نو بي شکَ زه راضِي يم چه ته م وچيچي ٭
مار چه يو طرف بل طرف وکاته يوه ميښه ئ وليده دواړه ور روان شول
چه ورغلل نو مار ور ته وُوِ چه اي ميښي جزا د نيکئ څه دَه ٭ ميښي
وُوِ چه په مذهب د آدميانو خو جزا د نيکئ بدِي دَه ځکه چه زه ديو سړي
کره وم چه ځوانه وم او پئ م ورکول نو ځدار م کيده چه بيا پئ م وچ شول
او بي طاقته شوم نو غور ئ ځما پريښوده او زه ئ بهر و شړلِم چه ځو ورځي
بهر وګرزيدم او لکوټي غوښه م جوړه شوه نو پرون ئ قصاب راوست او
زه ئ پرِ خرڅه کړلم نن به خود قصاب راشي ما به حلالولو له بيايي ٭
مار وُويل چه اوس خو پرِ شوي ځان را نه ټينګ کړه چه دِ وچيچم ٭
سواره وُويل چه شاهدان دوه پکار دِي که بل شاهد پيدا شي نو هاله

به سنا خبره منظوره شي ÷ چه مار يو خوا بل خواه وكاته بوه ونه ئي وليدله و ئي
ويل چه راځه چه دي وني له ور شُو ÷ چه ور نزدي شول نو مار ورته وُوِيل چه
اي وُني بدله د ښيګړ څه دَه ÷ وُني وُويل چه په دستور د آدميانو خو بدله د ښيګړ
بدي دَه ځکه چه زه دلته ولاړه يم او دوي نمر وهلي ستړي ستومانه راشي
ځما په سوري باندِ دمه وكړي چه بيا په آرام شي نو را ته ګوري او وايي چه
دغه ښاخ د يوم د لاسټي د پاره ډير ښه دي او هغه څانګه د تبرلاسټي لايقه
دَه او له دغه فلاني ځاي نه به ښي تختي وخيژي او له هغه ځاي نه به
ښي اُدرشلي جوړي شي اوكه آره يا تبر ور ځخه وي نو خواه مخواه څه خو را
نه پريکړي اوَ دِ ځان سره ئي يوسي ÷ مار وُويل چه اوس خودِ مقدمه
بايلله ځان را ته ونسه چه چک در باندِ ولګوم ÷ سړي حيران شه فكر
ئي كوه ناګهانه يوه لومبړه را ښکاره شوله او د دوي دا خبري ئي واړاه
آوريدلي وي جوړ دغه سواره ته ئي وُويل چه ځوانَ تا د دي مار سره څه
نيکي کړي دَه چه دي در سره بدي کوي ÷ سواره ور ته ټوله قصه د اور
او د توبري وويله ÷ لومبړي وِ چه زه نه منم چه دا مار به په دي توبره
کښ ځاي شي ځکه چه دي لوي دي او توبره ووکي دَه ÷ مار وُوِ چه نه

گوره چه زه څنګه په کښ ځان خلاص کړم. جوړ هغه ور ته توبره وښوله او
مار په کښ ور ننوت لومبړي سواره ته ووِ چه تلوار کوه د توبري خوله
کلکه کړه چه مار در نه خلاص نه شي جوړ سواره توبره وښوله او په زمکه
ئي وهله وهله چه مار ئي مردار کړ او ځان ئي تر خلاص کړ ؛

# حکایت پنځلسم

حرصناک مدام ګرفتار وِي او صبرناک همیش په قرار وِي ؛ لکه یو ښکاري
په صحرا کښ ګرزیده یوه لومبړه ئي ولیدله چه ډیر ښایسته رنګ او صاف
ویښته ئي ور نه ښکاره شول ؛ په زړه کښ ئي فکر وکړ و ئي ویل چه که
دا لومبړه ونسم او پوستکي تر وباسم نو امید دي چه په ډیر قیمت به خرڅ
شي ؛ نو په دي طمع په هغي لومبړي پسي روان شه او غار دهغی ئي معلوم
کړ ؛ بیا ئي ور ته یو ډوغل وکنوده او د پاس ئي پر وابنه واچول او د هغه
وابنو د پاس ئي یوه سرداره کښېښودله او دي ور ته په یو ځاي کښ پټ
شه ؛ چه لومبړه له غار ووتله او بوي پر د مرداري ولګید په هغه طرف
روانه شوله لیکن دِ ځان سره ئي وویل چه بوي د مرداري خو را باندِ لګیږي
مګر ګمان د بلا م هم په کښ کیږي او هوښیاران د وېري ځاي ته ځانونه

نه وړاندِ کوِي ÷ چه دا فکر ئې وکړ نو د مرداري سودا ئې له زړه نه لرې کړله
او بې غمه په يوطرف روانه شوله ÷ په دغه ساعت کښې يو وږي پړانګ
د غره له سرَ راکوز شه او د مرداري بوي پرِ ولګيده چه خوراک له ورته
ناګهانه په ډوغل کښې ولويده ÷ ښکارِي چه د پړانګ د غورزيدو غرب واوريده
ګمان ئې وشه چه ګنډره لومبړه ور پريوتله جوړ په تلوار راغي او ډوغل ته ئې
ور ودنګل ÷ پړانګ چه ولید ګمان ئې وشه چه ګنډِ ما له خوراکَ منعَ کوي
جوړ په خيټه ئې وله پړق ور کړ دوه پړقَ ئې کړ ÷ ښکارِي په سبب د حرص
په دام د هلاک کښې بند شه او لومبړه په سبب د صبر له بلا نه خلاصه شوله ÷

## حکايت شپاړسم

په عرب کښې يو بنه سړي وه چه واړو خلقو به په هر کار کښې له هغه
نه پوښتنه کوله او د هغه په نصيحت باندِ به هر چا عمل کاوه ÷
ناګهانه چه دي په کښې اوسيده د هغه خلقو يوه شپه ټول سپِي مړه
شول ÷ صبا له خلق هغه بنه سړِي له راغلل او د سپو له مرګَ ئې خبر
کړ ÷ هغه وُويل چه په دي کښې به خير وِي ÷ بله شپه د هغه کلِي ټول
بانګيان چرګان مړه شول ÷ خلق بيا صبا له راغلل هغه بنه سړي ئې په

دي خبره خبر کړ ٭ هغه بيا وُوِ چه په دي کښ به خبر وِيِ ٭ خلقو وِ چه عجيبه دَه سپو به څوکيِ کوله چرګانو به بانګونه ويل وقت د صبا به معلومېده نو د دوي په مرګ کښ کوم خير دي ٭ هغه وِ چه په پټو کارونو خداي بنده پوهـيږِي څمرنږ علم په دي خبرو نشته ٭ په دريمه شپه خلقو اور بلاوه ليکن اور نه بليده او لنبه ئي نه کُولَه ٭ هر چا وُويل چه خداي دِ خبر کړِي نه پوهيږُو چه څه بلا پيښيږِي ٭ ناګهانه له بل طرف نه پرِ لښکر ور وخوت ګير چاپير کلي ئي تول وسيزل مال ئي ور نه لوټ کړ ٭ چه د دغه خلقو کلي نه نزدِي شول د لښکر خلقو په کور کښ سره وُويل چه نه رڼا شته او نه د سپو غپا شته او نه د چرګانو بانګونه شته معلوميږِي چه خلق نشته نش کلي خالِي کورونه به څه کړُو ٭ په دي ګمان سره لښکر بيرته لاړ کلِي نه خير شه ٭ دهغه بنده سرِي خبره رښتيا شوه ٭

# حکايت اولسم

د بخيل سړِي هم مال زيانيږِي او هم ئي غم زياتيږِي يعني دوه تاوات ور ته پښيږِي ٭ لکه يو بخيل سړي وه چه ډوډيِ ئي د شاتو سره خوړله ناګهانه په کوڅه کښ چا ميلمه سړِي ور ته آواز وکړ ٭ ده په تلوار سره هغه

د ودئ لري کړله او چه شات يُ لري کول ميلمه پرِ وراغي شات يُ لري نه کړي شول ۞ ليکن د بخيل گمان دا وه چه دي به يو څې شات نه خوري نو ور ته يُ ويل چه خوره که نه که شاتو ته دِ مينه کيږي ۞ ميلمه وېل چه بنه دَه شات خو ډېر بنه څيز دي ولې به يُ نه خورم ۞ چونه لاس يُ پوري کړ شات يُ ښتل چه څه قدر يُ وښتل نو هغه بخيل ته يُ وويل چه بي شانَ بنه خوند لري ۞ بخيل ويل چه رښتيا دي مزه يُ ښه خو ډېر يُ مه خوره د سړي زړه سيزي ۞ ميلمه ويل چه بي شکه ډېره بنه وايي زړه سيزي ليکن ستا زړه سيزي ۞

## حکايت اتلسم

اِ يو بخيل سړي نه سل اشرفيُ په هميانئِ کښې چرته ورکي شولې که ډېر ډېر يُ ور پسې ټکر خو وُيُ نه موندلې ۞ نو وُيُ ويل چه هر چا چه وموندلي او ما له يُ راکړلي نو په خوښه به لس اشرفيُ په آبش هغه له ورکړم ۞ ناگهانه يو بنه سړي هغه هميانئِ وموندله او هغه بخيل له يُ ورکړله او ورته يُ وويل چه ما له نغه لس اشرفيُ چه تاويلي وي راکړه ۞ بخيل ور ته دُوِ چه په دي هميانئِ کښې خو لس د پاسَ سل اشرفيُ وې لس در ورسيدلې

او سل دا دِي ما له دِ راکړلي نو نور را نه څه غواړي خپل حق خو تا ته در
رسيدلي دي ÷ هغه سړي قاضي له لاړ شه په ټوله قصه ئي خبر کړ ÷ قاضي
مدعيٰ عليه را وغوښت ور ته ئي وُويل چه د ده حق ولي نه ور کوی ÷
بخيل وويل چه ده خو خپل حق بخپله له دي هميانئِ نه آخستي دي نو زه
وله څه ورکړم ÷ قاضي هميانئِ طلب کړله چه و ئي کتله هم هغه شان
تړلي وَه لکه څنګه چه وَه ÷ نو بخيل ته ئي وُوِ چه ستا په هميانئِ کښ لس
دپاسَ سل اشرفئِ وي او دا پوره سل دِي نو معلوميږِي چه دا هميانئِ
ستا نه دَه ته ورځه په خپلي هميانئِ پسي ګرزه او دا هميانئِ دي سړِي له
ورکړه چه خاوند ئي راشي نو هغه له به ئي ورکړِي ÷

# حکايت نولسم

نقل دي چه سليمان پيغمبر له يو سړي راغي او ور ته ئي وُويل چه ما
ته دعا وکړه چه زه د مرغانو په خبرو پوه شم ÷ هغه ور ته وُوِ چه د مرغانو
په خبرو به پوه شي ولي که چا ته دِ حال وُوايه نو په هغَه ساعت به مړ
شي ÷ هغَه سړِي وُويل چه ډيره ښَه دَه هيڅوک به نه خبروم ÷ سليمان ور
ته وُوِ چه ور ځه په خبرو به دَ هر څيز پوهيږِي ÷ سړي کور ته روان شه چه

شپه شوه د ده په کور کښ یو غوایه او یو خر او یو چرګ وو ۰ هغه خر
له غوایه نه پوښتنه وکړه چه وایه څوان ورځ د څنګه تیره شوې دَه ۰ غوایه
وېل چه ډیره سخته دَه ۰ خر ور ته وُوِ چه که ستا رضا وِي نو زه به تا ته
یو چل وُښیم چه له ډیرَ کارَ خلاص شې ۰ غوایه وېل چه ډیره ښه دَه
زه به ستا خبره وَمنم هر څه چه ته وایې ۰ خر وُوِ چه مصلحت دا دي چه
بېګا له ګیاه مه خوره ۰ غوایه وېل چه ښه دَه جوړ د شپې ئې هیڅ خوراک
و نه کړ ۰ او دغه سړي د دارو خبرې آورِیا ۰ چه صبا شه نو سړیا وُوېل
چه غوایه جوړ نه دي نن یاري په خر باندِ اسباب واچوئ چه د غوایه په
بدل کښ دي لاړ شي ۰ خر چه لاړ شه ورځ ئې تیره کړله چه شپې له خپل
ځاي له راغې نو غوایه تِرِ پوښتنه وکړله وېل ئې چه وایه څوان ورځ در باندِ
څنګه تیره شوې دَه را ته ښکاریږي چه تا هیڅ کار نه دي کړې ۰ خر وېل چه
بې‌شکه اول را باندِ داسې سختې راغلې وَه لکه چه پرون په تا وَه لیکن بیا
خیر شه څکه چه دوې ستا د حلالولو په فکر کښ شول نو زه خود له کارَ
خلاص شوم ۰ غوایه وُوېل چه ما ولې حلالوي ۰ خر وېل چه نور هیڅ خبر
نه یم خو دوي سره په کور کښ وېل چه دا غوایه ګیاه نه خوري راشئ

چه حلال ئې کړو هسي نه وي چه مړ شي ⁘ غوايه وُوِ چه اوس د دي خبري
څه علاج وکړم ⁘ خر وُوِ چه کيا وخوره بيا هيڅ وسواس دِ نشته ⁘ چه
غوايه کياه ته خوله ښکته کړله سړي په خندا شه د دوي په خبرو پوري ئې
وخندل ⁘ چه سړي ته خپلي ښځي وکتل نو ور ته ئې وُوِ چه ولي خاندي ⁘
سړي ويل چه هيڅ نشته ⁘ ښځي ويل چه يا م له دي خندا نه خبر کړه او
که نه وي نو دوه خبري دي يا ليوني شوي او يا دِ بله ښځه خوښه شوي ده ⁘
سړي ډير څه وکړل خو ښځي ور ته وُوِ چه حرام شه که دِ پريږدم ⁘ چه پوره
نه شوه نو سړي ويل چه وار کوه چه باري زه وصيت وکړم نو په حال در
ته وُوايم ⁘ چه ده په وصيت شروع وکړه نو غوايه او خر له غم خوراک او اوبه
پريښودل او چرګ بيغمه توپونه وهل او چرګي ئې ويستلي او خوشحال ګرزيده ⁘
غوايه او خره ور ته وُويل چه څموږ خاوند مړ کيږي او ته داسي خوشحاليږي ⁘
چرګ ويل چه پريږدي چه مړ شي ⁘ هغو ور ته ويل چه ولي داسي وايي ⁘
ده ويل ځکه چه څما د لاندِ شل ښځي دي او ما ټولي په ادب کړي دي او
د ده يوه ښځه ده هغه هم ده په ادب کړي نه ده ⁘ هغو وُوِ چه دا
به څنګه وشي ⁘ ده وِ خو کوټک دِ را واخلي او پر دِ را وګرزوي چه اوس

ئي يا ووژني او يا ور ته توبه وباسي ۞ چه سړي دا واوریده اوچت پاڅیده کوتک ئي واخست خو چه يو دوه گذار ئي وله ور کړل ښځي توبه کړله او چپ کښيناستله او سړي له مرګ خلاص شه ۞

# حکایت شلم

له يو حکيم نه نقل دي چه ویلي ئي دي چه له هر ځناور نه م يو يو خوي غوره کړي دي ۞ چا ور ته وويل چه په سپي کښ در ته کوم خوي ښه ښکاره شوي دي ۞ هغه ووِ چه ډيره مينه په خاوند باندِ ۞ بيا ئي ور ته وويل چه په خنزير کښ دِ کوم خوي خوښ دي ۞ هغه ووِچه وختي په خپل کار پسي روانيدل ۞ بيا ئي ور ته وويل چه په قارغه کښ در ته كوم خوي غوره معلوميږي ۞ هغه ووِ چه له هر چا ويريدل ۞ بيا ئي ور ته وويل چه د پيشو در ته كوم خوي ښايسته ظاهريږي ۞ هغه ووِ چه ډيره زاري كول په وقت د سوال کښ ۞

# حکایت يوویشتم

يو سړي وه چه ډير دولت ئي لاره ولي دومره شوم وه چه خپل ځان ته به ئي خپله ډوډئ نه زړه کيدله ۞ يوه ورځ چا وله ميلمستيا وکړه چه دي

لاړ شه هغه د کور خاوند وله قِسم قِسم خوراکونه راوړل * ده چه پرِ شروع وکړله اول ئې غوښې وخوړلې ولې په سبب د ترشئ او د مصالې ده لره ئې مزه ور کړله ډیرې ئې وخوړلې * بیا ئې ور پسې ګیر ور ته کیښنو هغه خود نرم ښیز وه شخوند ئې نه غوښت په هغه ئې لا ستندې وکړلې * داسې هاګئ قرمه ماچې آچار چه ئې ښه وموندل صرفه ئې و نه کړه * پس له خوراکَ د ډوډئ نه هغه د کور خاوند هر قِسم میوه حاضرَ کړله لکه شفتالُو خټکې انګور ناک * چه ده هغه میوې ولیدلې داسې ور ته هیبت واخست لکه سړې د ډیرو ورځو ږهار وِې او ښه ښیز ئې په سترګو نه وِې لیدلې * حاصل دا دې چه په هغو میوُو پاندِ ئې هم خپله طبعَ صافه کړله * بیا چه دومره ګرم یخ سره په ګیډه کښ جمع شول نو خواه مخواه اوبه ښخښل هم پکار وُو چه د اوبو وار راغې نو یو جام به ئې وله ډک ورکاوه او بل به ئې ترِ تش آخست دومره اوبه ئې وښښلې چه ګیډه ئې لکه شناز و پړسیدله او له ځایَ خوځیدې نه شه لیکن چه لا توّت ئې په ځاې وه نو په ډیر تکلیف سره ښان ئې خپل کورته ورساوه چه کور ته ورسیده نو غلې وله هسې زور ورکړ چه ساه ئې په خوارئ سره په سپیږمو آخستله * بیا چه سختې

پر زیاته شوه او مرګ ته نزدي شه نو هرچا ویل چه اوس یې ځانکندن
دي مړ به شي ÷ ناګهانه چا وله طبیب راوست چه طبیب ور ته وکتل دِ چه
معلومیږي چه خوراک دِ ډیر کړي دي ÷ ده وِ چه هو زه چا میلمه کړي وم د
هغه کره مِ څه قدر ډوډیۍ خوړلي دَه ÷ طبیب ور ته وِ چه ظالمه که کور
پردي وه نو ګیډه خو دِ خپله وَه که نه وَه ÷ ده وِ چه بیشکه دا رښتیا وایي
لیکن نه را نه چا ډوډیۍ پورته کوله او نه یې تر زه پاڅولم او پخپله خود
کبر کیده زه به له پخي ډوډیۍ نه څنګه پاڅیدم ÷ طبیب ویل چه خیر څه
وشوه هغه وشوه لیکن اوس داسي دارُو پکار دِي چه ته وجارباسي ÷ ده
وِ چه دا خوراک خو څما نه زړه کیږي که چري داسي دارُو دِي چه دا هضم
شي خو ښنَه دَه او که نه وِي نو خیر دي په مره کیده مرګ بهتر
دي او دومره زیان مِ له مخَ نه کیږي ته ور څَه رخصت یې ÷

# حکایت دوه ویشتم

یو سړي یو صراف ته ډیر مال وسپاره او په سفر لاړ شه ÷ چه له
سفرَ را وګرزیده نو له صرافَ یې مال غوښت و غوښت صراف منکر شه
دَ یې ویل چه ما له دِ مال هیڅ راکړي نه دي ÷ هغه سړي قاضي له

لاړ شه او حال خپل ئې ور ته ووايه ✤ قاضي ور ته وُوِ چه ته چا ته شور مه کوه زه به ستا غور وکړم ✤ يو څو ورځي پس قاضي هغه صراف را وغوښت او ور ته ئې وُوِيل چه زه يواځي يم او کارونه را باندِ ډير دي را نه پوره کيږي نه ✤ نو دا م په زړه کښ فکر وکړ چه ته يو ديندار سړي يې چه تا وکيل کړم نو ډير به ښه وِي ✤ صراف دا خبره قبوله کړله او ډير خوشحال شه ✤ چه کور ته لاړ شه نو قاضي هغه سړي را وغوښت او ور ته ئې وويل چه اوس ورشه خپل مال نرِ وغواړه ✤ سړي صراف له ورغي خوچه هغه له ورايه وليد ور ته ئې وُوِ چه ځوانَ هر کله راشه ډير ښه وشُو چه راغلي ستا مال ځمونږ کره وه ليکن ځما له فکرَ وتلي وه بيګاه را ياد شه ✤ چه مال ئې وله ورکړ نو بيا په اميد د وکيل توب قاضي له لاړ شه ✤ چه قاضي وليد ور ته ئې وُوِ چه نن بادشاه له تلي وم په دلبار کښ م واوريده چه بادشاه تا ته يو لوي کار سپارِي نو ته اميدوار اوسه چه مرتبه به دِ ډيره لويه شي او زه به ځان له چرته وکيل پيدا کړم ✤

## حکايت دري ويشتم

نقل دي چه يو سړي آس ساتلي وه او ډيره مينه به ئې ور سره کوله او

شپه او ورځ به په خدمت ور ته ولاړ وه . سحر نمازدیګر به ئې لښاوه کراره
به ئې په وقت کوله د اوربوشو د آرداوي غور به ئې په ښه شان
کاوه او ناري به ئې مصاله‌دار وله مدام طیاراوه او هره ورځ به ئې د
ولو په غاړو باندِ په شنو شنو واښو کښې ګرزاوه اوچه چرته به ډیر
واښه ییښې شول نو هلته به ئې لویه رسۍ په کښې واچوله او موزي به ئې
تک واهه او رسۍ به ئې په موزي پوري وتړله نو دغه آس به ئې په هغه
واښو کښې پرېښو بیا دي به په کښې کله خرېده او کله رغړېده او کله به
ئې ټکۍ پورته کړله توپونه به ئې وهل او خاوند به ئې په تماشه خوشحالېده .
یوه ورځ له ورځو وه چه دي سړي دغه آس بهر بوت ناګهانه چه تړکوز شه
جوړ آس وُدنګل سرکښي ئې وکړله زین واګي جلب ترسري واهه اسباب ئې
د ځان سره وشړناوه . خاوند ور پسي تمامه ورځ وزغلېده مګر هغه آس
وه او دي سړي وه لاند ئې نه کړي شه آخر سړي ستړي شه او آس لاړ له
سترګو ئې فنا شه . چه تماښام شه سړي غریب ستړي ستومان کور ته
راغي بېطاقت په کټ کښې پرېوت . او په آس باندِ چه وقت د داني شه نو
وږي شه چه خوله ئې وانښو ته ښکښه کوله واګي ئې په زین کښې لښتي

وي خوله ئي وابښو ته و نه رسيدله * چه نبت ئي د رغړيدلو وکړ زين پرِ د
پاسَ پروت وه هغه کارهم برابر نه شه * چه په يوه ډډه به ئي آرام کاوه
يو رکاب به تر لاندِ شه په بله ډډه به بل رکاب ور ته وراندِ شه دا خبره
هم و نه شوه * تمامه شپه لکه د ځوګيدار په ولاړي پرِ تيره شوله *
صبا له بيا په هغَه ميدان کښ حيران ګرزيده ناګهانه يوه وله ئي په مخ
کښ راغله چه دي ورګډ شه هغَه وله ژوره وَه اويه په کښ ډيري ريا
توله اسباب ئي په اوبو کښ لوند شه * چه په ډير کوشش سره ځر راووت
او ټمر پرِ ولګيده هغَه تسمي د اسباب د ده توَلي د اومي څرمي وي خو چه
وچي شوي نو ډيري کاکَي شولي * بيا هر ځاي چه به د ده په تسمه لګيده
هغَه ځاي به ځوخيده * غرض دا دي چه ګيډي ته ئي زخم ورسيده ملا
ئي ځوږ شوله خټ ئي غوڅ شه چه څه سختي په دنيا کښ يادبدله هغَه
ور ته پيښه شوله * چه ډير وږي شه او کمزوري شه او عاجز شه نو
په يو ځاي باندِ ولويد * ناګهانه خنزير ور باندِ پيښ شه اول خو ور
ته په قهر شه ولي چه د ده خواره ورځ ئي وليدله نو زړه ئي پرِ وسه او
ترِ ئي پوښتنه وکړله چه دا ولي دِ داسي حال شوي دي * آس ور ته په

ثواب کښ ووېل چه دا تول د دې او د واکو او د تسمو سبب دي ÷
بیا آس ور ته ووېل که نکوېټي ما له دې بند خلاص کړي نو ډېر ښه به وي
ثواب به د وشي ÷ خنزیر ور ته ووې چه څه گناه د کړي وه چه داسي
حال در ته پیښ شه ÷ آس ووېل چه زه خو داسي هیڅ گناه څپل ځان ته
نه گنړم چه د دومره سختۍ لایقه وي ÷ خنزیر ووې چه داسي نه ده یا نه
دروغ وایي او یا جاهل یې نه پوهېږي چه گناه څه ته وایي نو که دروغ
وایي خو زه د نه خلاصوم پرېږده چه کړېږي او بیا مړ شي او نه د آشنائي
کوم څکه چه خلق وایي چه د بدخویي سړي سره آشنائي ښه نه ده د
سړي خوئ خرابېږي ÷ او که نه پوهېږي نو بیا ستا دپاره دا بتر ښه دي
څکه چه ناپوهي داسي څیز دي چه له دې سختۍ نه به د په زبانه سختۍ
کښ پرېباسي ÷ بیا آس ور ته زاري وکړله ویل یې چه ما خلاص کړه ÷
خنزیر ور ته ووېل چه ما ته ربښتیا ووایه نو به د خلاص کړم ÷ آس
ور ته له سره څپله قصه شروع کړله او حال یې ور ته ووایه ÷ نو
خنزیر ووېل چه اوس پوه شوم چه ته لوی جاهل یې او په تا کښ ښېړ
گناه جمع شوي دي ÷ وړبنيژ د خاوند پرېښودل دوېمه د هغه احسان

هیروَل دریمه هغَه په ښان پسي زغلول او سترِي کول څلورمه اسباب
د ښان سره تښتول پنځمه په ښان باندِ دا گمان کول چه زه به یواځي
گذران وکړِي شپږمه همیشه په هغَه گناه کښ پاتي کیدل او توبه
ور نه نه ویستل او خاوند له بیرته نه ور تلل ◈ آس وُویل چه اوس پوه
شوم چه زه له دي عذابَ دوچند لایق یم ◈ خنزیرِ وُویل چه اقرار دِ وکړ
او ښان ته دِ ملامت وُوایه نو اوس به دِ خلاص کړم ◈ بیا ئِي هغَه تسمي
پریکړلي او آس ئِي له بندَ خلاص کړ ◈

# حکایت څلیرِ ویشتَم

په وړښیءِ زمانه کښ یو سړی وه چه یوه ورځ بازار ته د مریي آخستلو
دپاره لاړ شه ◈ چه یو دُکان له ورغې څه گورِي چه یو مریي ولاړ دي ◈
ده ور ته وُوِ چه هلکَ ستا خوښه دَه چه دِ واخلم ◈ هغه وُوِ چه زه مریي
یم څما هیڅ اختیار نشته ◈ بیا ده ور ته ویل چه نوم دِ څه دي ◈ هغَه
ویل چه ستا خوښ وِي هغه نوم را ته وایه ◈ بیا ده ور ته وُوِ چه څه
کار به کوي ◈ هغه وُوِ چه دِ رضا وِي هغَه کار را باندِ کوه ◈ بیا ده ور
ته وُوِ چه څه رنگ جامه به آغوندي ◈ هغَه ویل چه څه را کويِ هغَه به

آغوندم ‌* بیا ده ور ته وُوِ چه څه به خوري ‌* هغَه وُوِ چه ستا څه خوښ دِي هغَه به خورم ‌* دي سمِي په زړه کښ وُوِیل چه دا خو ډیر بنا ئیسته مړيي دي ‌* چوړ د خاوند سره ئي بیعَ وکړه تړِ نه ئي واخست ‌* بیا هغَه مړيي ور ته وِیل چه یوه خبره زه هم کوم که ستا رضا وِيي ‌* ده وِ چه بي تنکَ وُوایه ‌* هغه وِ چه زه به د ورځي ستا خدمت په ښه شان کوم خو د شپي را باندِ غرض مه لره ‌* ده وِیل چه ډیره ښَه دَه ‌* نو ور سره هغه مړيي روان شه دواړه کور ته لاړل ‌* هر څه چه ده به ور ته وِیل هغه به کول او چه شپه به شوه هلک به لاړ شه تر سحَر پوري به نه وه چه سحر به شه بیا به راغي ‌* حاصل دا دي چه هم په داسي شان به ئي مدام گذران کاوه ‌* چه څه قدر مُده تیره شوه نو دي خاوند ئي فکر وکړ او د ځان سره ئي وُوِ چه دا حال خو معلوم کړم چه دي د شپي چرته ځي ‌* نو یوه شپه ور پسي روان شه که گوري په یو زوړ نمیدِلی وران قبر کښ ننوا ور ته ښکاره شوه ‌* چه دي ور نزدي شه یو فانوس ئي ولید چه شمعَ په کښ بلیدله او دغه هلک ولاړ وه لمونځ ئي کاوه ‌* چه له نمانځه نه وزگار شه نو خداي پاک ته ئي زاري کوله او وِیل ئي چه اي د بادشاهانو

بادشاهٔ ته په پټو او په ظاهرو کارونو خبر يي د دنيا طالبان دِ خپلو
کارونو ته وَرَسَول نو د آخرت طالبان هم خپلو مطلبونو ته وُرَسَوه اي ځما
پاکَ خدايَ زه ډير عاجزيم ځما مراد حاصل کړه ÷ هر کله چه خاوند يي دا
حال وليد نزه ئي صبر نه شه ورغي د هلک په پښو پريوت او لاسونه
ئي کښلول ÷ هلک پورته وکتل و ئي ويل چه اي مهربانَ خدايَ ځما پرده
څيري شوه نور په دي ژوندون بانډِ خوشحال نه يم ÷ خاوند ئي لاسونه
بنولي وُوِ چه مخ ته ئي وکاته دهلک ساه ختلي وَه ÷

# حکايت پنځه وبشتم

يو سړي وه چه د بادشاه په دلبار کښ به وډريده او دا آواز به ئي
کاوه چه د نيکانو سره نيکي کوه او بدانو ته به خپله بدي بخپله ور
رسيږي ÷ او د يو سړي ور ته په دي خبره ډيره کينه پيدا شوله او په
زړه کښ ئي دا فکر وکړ چه داسي کار وکړم چه دي د بادشاه له دلبارَ
منع شي ÷ نو بادشاه له ورغي او ور ته ئي وويل چه مهربانَ دا سړي
چه دلبار له راځي او دا آوازونه هميشه کوي د ده له خولي نه آوريدلي
شوي دِي چه خلقو ته وايي چه د بادشاه له خولي نه بد بوي ځي ÷ بادشاه

ډیر په قهر شه او و ئې ویل چه ښتّګه به دا خبره معلومه ښي ❊ هغه
چغلي خور وویل چه بادشاه دِ ئې خان ته را وبولي نو چه دي بادشاه ته نزدي
ښي نو دا ئې ښه دَه چه په خپله خوله به لاس کیږدِی ❊ بادشاه وُویل چه
خیر اوس ته بي غمَ شَه زه به دا حال معلوم کړم ❊ او دغه چغلي خور چه
لاړ شه نو هغه سړي ئې را وغوښت په خپل ځاي کښ ئې میلمه کړ چه
ډوډیِٔ ئې وله راوړله نو پیاز ئې ور سره هم کیښود ❊ چه ده ډوډیِٔ وخوړله
نو بیا روان شه دلبار له ورغي او په هغه خپل ځاي ودریده او آواز ئې
وکړ چه دنیکانو سره نیکي کوه ځکه چه بدانو له خپله بدي بس دَه ❊
بادشاه ور ته وویل چه دلته راشه خبره در ته کوم ❊ چه دغه سړي ور
نزدي شه نو په خپله خوله ئې لاس کښیښو دپاره د دي چه بادشاه له د
پیاز بوي ور نه رشي ❊ د بادشاه یقین راغي چه هغه سړي رښتا ویل جوړ
زر زر ئي یو خط ولیکه او یو امیر ته ئې د دغه سړي په لاس ولیګه او
په هغَه خط کښ ئې کښلي وُو چه هر وقت چه دا سړی در ورسیده نو
حلال ئې کړ او پوستکي ئې وباسه او له بوسو ئې ډک کړه بیا ما ته ئې را
واستوه ❊ او دستور د بادشاه دا وه چه کاغذ به ئې بغیر له انعامَ بل د

هيڅ خيز د پاره نه ورکاوه * چه دي روان شه نو هغه چغلي‌خور ور پسي
لاړ شه او ور ته ئې وويل چه دا کاغذ ما ته ونخښه * هغه سړي وله
کاغذ ور کړ چغلي‌خور روان شه کاغذ ئې هغه امير له ور کړ * چه امير
کاغذ ولوست جوړ جلاد ئې را وغوښت او حکم ئې ور ته وکړ چه دا سړي
مړ کړه او پوستکي ئې وباسه * چغلي خور وويل چه ولي داسي کوئ * امير وو
چه د بادشاه حکم په دي شان شوي دي چه د کاغذ په در تلو دا سړي
ووژنه * چغلي‌خور وويل چه وار وکړه دا کاغذ د بل چا د پاره شوي دي خو
چه هغه را ولم * امير وويل چه دا په کښ بادشاه نه دي کښلي چه ګنډ
وار ور ته وکړه * پس له هغه جلاد ور پاڅيده او سر ئې تر پري کړ او پوست
ئې ور نه وکښه او له بوسو ئې ډک کړ بادشاه له ئې ور وليږه * چه صبا
شه هغه سړي بيا په دستور خپل راغي او وئې ويل چه د نيکانو سره
مناسبه ده چه سړي نيکي وکړي او د بدانو سره دِ سړي بد نه کړي په دا سبب
چه هغه خپل خوي د هغه ډير دي * بادشاه ور ته حيران شه وئې ويل چه
هغه کاغذ دِ څه کړ * سړي وو چه فلاني سړي راغي له ما نه ئې وغوښت
جوړ هغه له م ور کړ * بادشاه وو چه تا ويلي وو چه د بادشاه له خولي

نه بد بوي ژغي + هغه ویل چه نه ما خو هیچرې ویلي نه دي + بادشاه وُوِ چه تا هغه ورځ ولي په خولي باندِ لاس کښېښود چه ما ته را نزدي شوي + هغه وُوِ چه ما له هغه فلاني سړي پیاز راکړي وه نو ما ویل چه هسي نه وِي چه بادشاه له بوي ورشي + بادشاه وُوِ چه رښتیا وایي بدان دخپلي بدیُِ جزا بنجیله مومي هغه ته خپله بدي ورسیده او نه ور ځه خپل آواز په هغه شان کوه +

# حکایت شپږ ویشتم

یو سړي په سفر روانیده نو له یو حکیم نه یې پوښتنه وکړه چه له چا سره ملګیرتیا کوم او له چا نه ځان ساتم + حکیم ور ته وُوِ چه له اته رنګ سړو نه په ډډه ګرزه + اول هغه چه احسان نه مني + دویم هغه چه بي سببَ قهر ورځي + دریم هغه چه له آخرتَ بي پروا وِي + څلورم هغه چه تنګ وِي + پنځم هغه چه دروغ ګوي وِي + شپږم هغه چه شهوت پرست وِي + اووم هغه چه بي حیا وِي + اتم هغه چه بي هیڅ په خلقو بد ګمان کوي + او د اته قسمَ سړو په دوستيُِ پسي ګرزه + اول هغه چه په نیکيُِ قایل وِي + دویم هغه چه له آشنا نه په سختيُِ کښ لاس نه

آخلي ✤ دريم هغه چه ويل او کول ئي دواړه بنه وِي ✤ څلورم هغه چه له
کبرَ خان ساتي ✤ پنځم هغه چه عقل ئي په قهر غالب وِي ✤ شپږم
هغه چه بي طمع سخاوت کوِي ✤ اووم هغه چه ادب ناک وِي ✤ اتم هغه
چه دوست د صالحانو وِي ✤ هغه سړي چه لار شه او په دي خبرو ئي عمل
وکړ به ډيره خوشحالئ سره له سفرَ بيا راغي او له ناکارَ خويَ بالکل خلاص شه ✤

# حکايت اووه ويشتم

د چرګ او د چرغ سره آشنائي وَه ډيره موده ئي سره په يوځاي ناسته
کوله ✤ يو ورځ چرغ وُويل چه اي چرګَ ستاسو اصل ډير بي وفا دي او
ډير بي پتَ دي ✤ چرګ ور ته وُويل چه دا څه وايي په موږ کښ کومه
بي وفائي او بي پتي دَه ✤ چرغ وُويل چه زه وينم چه دا خاوندان تاسو ته
اوبه په لوښو کښ ږدِي او جوار غنم اوربوشي د ډوډيِ پوڅي در ته اچوِي
او سره د دي تاسو له دوي نه داسي تښتئِ چه نور پرِ نه کيږِي ✤ او موږ
داسي يُو چه څمونږ نه هر يو چه دي سړو له په لاس ور شي که باز
وِي که باښه وِي که شِکري وِي که کټه وي که جُرّه وِي که چوز وِي که
تږناک وِي نو دوي خو ئي اول سترګي وګنډِي او خوراک اوبه ترِ منع کړِي او

شوکيږي وله ورکوي مطلب دا دي چه په قسم قسم عذابونو ئي عذابوي او بيا چه ستړګي ئي پرانځي نو لړه لړه غوښنه وله ورکوي تر هغه پوري چه له سړي نه نه ويريږي ÷ نو بيا په ګښ لوي مزي واچوي او په چرګ يا په تنزري يا په زرکه يا په سبسئ يا په قارغه يا په ښارونئ يا په نوړز يا په چرچڼره ئي ورپريږدي ÷ او په هغه ښيز ګښ ئي هم تار آچولی وي او وزر ئي تړ وکښلي وي نو دي خود وړي وي په ډېره مينه سره ئي ولښي خاوند ئي په تلوار پسي راشي او هغه ښيز تر خلاص کړي ÷ بيا چه ښه آموخته شي نو مزي تړ وباسي او په مرغئ پسي ئي پريږدي او ښکار پر کوي او کله کله داسي طرف ته والوزي چه له نظرَ او د ليدو له حدَ بهر شي او که نه راځي نو لاس پر د هغه نه رسيږي او سره د دي ټولو کارونو چه ما در ته ووِ بيا هغه خاوند له راشي او بل طرف ته نه ځي ÷ نو ته ګوره چه موږ څنګه وفادار يُو او نمک‌حلال يُو ÷ چرګ چه دا خبره واوريده نو دومره ئي وخندل چه له ډيري خندا نه په شا لاړ شه ÷ چوغ ور ته ووِ چه چرګ دا په څه سبب دومره خندا کوي ما څه خطا خبره وکړله او که دروغ م ووِ ÷ چرګ ووِيل چه هسي ستا په دي ناپوهئ پوري خندا راغلله نو م وخندل ÷ چرغ

وِیل چه ښنکه * چرګ وِیل چه ګوره که چرې ستاسو له ذاتَ سره داسې وکاندِ
چه هره ورځ یو یو لِښې او حلالوِې ئې او سر تر پرېکوِې او پوستکې ترِ
وباسِې او په اور ئې ورتوِې یا په کټوئِ کښ ئې پخوِې نو رښتیا وایه که چرې
طاقت دِ کیږِي نو آسمان ته به والوزې او که نه * چرغ وُوِیل چه بې شکَ حق
ستا په طرف دي خما فکر هم و دی خبرې ته نه وه اوس پوه شوم *

# حکایت اته ویشتم

په کتابونو کښ لیکلي کیږِي چه لقمانِ حکیم په اَوّلْ حال کښ مریې وه
په رنګ تور او په شکل ناکارَ مګر په هوښیارتیا کښ پوره وه * یوه
ورځ خاوند دپاره د خرځولو بازار ته بوت ناګهانه یو زمیندار پرِ پیښ شه
له هغَه خاوند نه ئې په قیمت سره واخست او خپل ځایْ ته ئې بوت *
چه شپه شوله خاوند ئې اوده شه او دي یو خالِي ځاي ته لاړ شه او په
ذکر د خداي خپل مشغول وه * هر کله چه ددیمه حصه شپه تیره شوله
نو راغي خاوند ته ئې وُوِیل چه صاحبَ پاڅه که جنتَ کټې او له دوزخَ
خلاص ساتي * خاوند ئې وُوِیل چه پرېږده چه خوب وکړم رب مهربان دي *
دي لاړ شه چه دریمه حصه شپه نوره هم تیره شوه بیا راغي خاوند ته

يُ وُوِ چه پاخه صاحبَ کړ د آخرت د پاره څه توښه طياروي ÷ هغه ور ته وُويل چه قرار شَه خوب راځي خداي به فضل وکړي ÷ لقمانِ حکيمِ بيا هغه ځپل ځاي ته لاړ شه چه صبا شه بيا راغي وِيل يُ چه اي صاحبَ مهربانَ سرِي او چارپايان او مرغان ټول د خداي ذکر کوِي نو که ستا څه نيکي په نيت کښ وِي نو دا يُ وقت دي ÷ هغه ور ته وُوِ چه لکوټي م پريږده چه آرام وکړم ÷ لقمان تر لاړ شه د صباح مونځ يُ ادا کړ ځپل وِرد وظيفه يُ پوره کړل نو خاوند يُ پاڅيد لقمانِ حکيم ته يُ يوي او جغ او سسپار او سسپارکوري او چوکه او سربانډي طيار کړل او د تخم کوڊي کښ يُ وله لس سيرَ اوربوشي واچولي او غوايان يُ د قلبي ور ته په مخ کښ کړل ÷ ويل يُ چه څَه په فلاني ځاي کښ له چا نه پوښتنه وکړه څموږ ځمکي به در ته وښيِي نو کيلونه په کښ برابر وباسه او په بيل بيل کيل کښ تخم په مناسب سره ولونه او يوي کوه يو ساعت له به زه هم درپسي در شم او که زه در نه شم هم ځپل کار وکړه نو کور ته راځَه ÷ لقمان وِيل چه ډيره ښَه دَه چه له کورَ وُوت د يو کوانډِي کره ور ننوت او هغَه اوربوشي يُ په غوښتو بدلي کړلي بيا روان شه ځمکي له ورغي غوښت يُ په کښ وکړل ÷

تر نمابنامَ يُې يِږې وکړه خو خاوند يُې ور پسې لاړ نه شه * دد چه ښځې واړاوه
او نخم يُې وکاره نوکور ته را روان شه * چه څه موده تېره شوه نو خاوند
يُې ور ته وُوېل چه لقمانَ څَه چه لاړ شُو چه د ښځې ننداره وکړُو * لقمان
وُوِ چه ډېره ښهَ دَه دواړه سره روان شول * چه ښځې له ورغلل خاوند
يُې تماشه کوله چه يُې وکتل اوربوشي ور ته ښکاره نه شولی * و يُې ويل چه
لقمانَ دا زرغونه خو د اوربوشو نه دَه دا ټيغونه خو د بل څه دِي * لقمانِ
حکيم ويل چه هو صاحبَ دا غوښت شوِي دِي هغَه اوربوشي ما نه دِي
کرلي * خاوند يُې وُويل چه دا څه سبب دي ما خو تا له اوربوشي در کړي
وي او تا غوښت کرلي دِي * لقمانِ حکيم ويل چه صاحبَ خير دي مه
خپه کيږه خداي مهربان دي اوربوشي به وشي * خاوند يُې وُوِ چه ربښتيا
وايي خداي مهربان دي ولي تا غوښت کرلي دِي نو څنگه به اوربوشي وشي *
لقمانِ حکيم وُويل چه صاحبَ لکه چه ته خوب د غافلانو شان کوي
او مرتبه د صالحانو شان غواړي *

## حکايت نه ويشتم

په يو ځنگل کښ زمري ډېره ېنولي وَه او د هغَه ځنگل ځناور د هغه

زمرِي پہ سبب سره ډیر تنگ وُو او گذران ئې سخت وه ÷ یو وار ئې مصلحت وکړ چه تول ښناور هغه زمرِي له راغلل او ور ته ئې وُویل چه مونږ به پہ خوښه سره تا له وظیفه مقرره کړو نو ته په ورځ ورځ خپله وظیفه آخله او زیاتي پہ مونږ غرض مه لره چه مونږ پہ آرام سره عمر تیروُو ÷ زمرِي وویل چه ښایسته خبره کوئِ مگر ښما باور نه کیږِي ځکه چه په دي زمانه کښ ما له هیچا نه خیر نه دي موندي بلکه هر چا را سره په قدر قدر بد کړِي دِي ÷ ښناورو ور ته وُوِ چه توکل پکار دي او که ته ډیر کوشش وکړِي خو له نصیبَ به هیڅ زیات نه کړِي ÷ زمرِي وُویل چه ښه وائِي توکل ډیر ښه خبرِ دي لیکن کسب کول هم سنت دِی نو خواه مخواه سړِي له مناسب دِي چه هسي کښیناستل نه کوِي ÷ ښناورو ور ته وُویل چه رښتیا خبره د دَه چه سړِي یقین کم لرِي نو توکل ئې هم کمزورِي وِي ÷ زمرِي وُویل چه ښم دا هسي خبره دَه لکه چه تاسو وائِي مگر چه سړِي له کوښي راکوزیږِي نو په اندرپایه راکوزیږِي او په یو یو دستکي پښه بږدِي داسي نه کوِي چه کُنډِ په یو وار ښان کوز غورزوِي ÷ نو معلومیږِي چه عقل او سترکي د سړِي عبث نه دِي بلکه په هر څه کښ خداي فایدي پیدا کړِي دِي ÷ په سترگو

لیدل کیږي په لاسونو بیول په غوږو آوریدل په پښو تلل په خولې خوړل داسې
په هر اندام کښې بلکه په هر قسم مخلوق کښې رنګ رنګ او بیلې بیلې فایدې
دي ٭ نو که کسب ښه نه وي نو دا به نه وُو مګر چه سړي کسب کوي او سړه
له کسب توکّل هم کوي نو هغه بهتره خبره ده ښناورو په یوه وار شور جوړ کړ
او ډیر ئې ور پوري وخندل او وئې ویل چه تا هغه نه دي آوریدلي چه
یو سړي وه چه د هغه په کلي کښې ویاګڼه شوله نو دي له مرګه تښتیده
یو ځاي کښې په یوه سمخ کښې ننوت هلته پرې یو کانړي پریوت دسې مړ شه
هغه تښتیدل ئې هیڅ بکار نه شول ٭ مزري وُویل چه خبره کوئ خو بیمکري
ئې کوئ تاسو نه پوهیږئ چه نوح پیغامبر خداي خلاصاوه نو ورته ئې حکم
وکړ چه بیړئ سازه کړه سره د دي چه بې بیړئ ئې هم ساتلي شه مګر چه اولاد
نه ئې ښکاره شي چه کسب ښه څیز دي ٭ ښناوروي وُویل چه ستا خبره
منظوره شوله چه کسب ښه دي نو دا توکّل خو هم یو کسب دي نو بیا دا
کسب دِ ولي نه خوښیږي ٭ حاصل دا دي چه ښناور په حجّت کښې غلبه
شول او د زمري څه دلیل پاتي نه شه خواه مخواه ئې غاړه کیښوده ٭ پس
له هغه به هوسو او کیدړو او سویو او لونبړو په کور کښې یو تن په پچه

پر کاوه او وله به يې را ليږه ٭ مږږي هم فکر وکړ چه بې تکليفه خوراک هميشه پيښيږي نو ښه پکار چه ځان ربړوم ٭ چه د هر ځا به وار وه هغه به مږږي له ور ته او نور به بې وسواسه به ښکلي کښل کرزيده ٭ ناګهانه چه وار د سوپي راغي نو ځيل نوم ته يې ووېل چه آخر تر کومه بوري به دا ظلم په مونږ باندې کيږي ٭ هغو ټولو عزيزانو ور ته ووېل چه دا خبره مه کوه ښکه چه تر اوسه پوري په هر ځا چه وار راغلي دي نو عذر يې نه دي کړي ٭ دا بدناموسي راځي چه مونږ ور سره پخپله وعده کړي ده او بيا يې ماتوو ٭ سوي ور ته ووېل چه که تاسو ښما آوريځ نو زه به داسې کار وکړم چه ټول به له دي غمه خلاص شو ٭ بيا ښناورو ور ته ووېل چه اې کمعقلي دا کوم خيال دي چه تا خوښ کړي دي آخر ځان ته وګوره له ټپلو غوږو وشرميږه نوم ته د فکر وکړه چه خر۔ګوش در ته ويلي شي ٭ سوي ووېل چه دا خبره مطلق مه کوئ په دي سبب چه عقل او پوهه خداي سړي له ور کړي او بيا د وړوکو له لاسه هسې کار وشي چه لوي ور ته حيران پاتي شي ٭ تاسو ته کوريځ چه مچي خومره وړوکی ښيز ليدي شي او په ښه رنګ سره ښايسته کور ډک له ګبينه جوړ کړي ٭ ښناورو ور ته ووېل چه مونږ په دي خبه نه يو چه دا بلا ښمونږ

نه دفع کړي مګر خپه په دي یُو چه دا کار کیدوني نه ګڼړُو بلکه فساد به نرِ
ډیر جوړ شي ❖ او که تا څه خبره غوره کړي وِي نو مونږ ته يُ هم وُوايه چه
په کښِ مصلحت وکړُو ځکه چه د دوستانو په اتفاق او په جرګه کښِ ډیر خیر
وِي ❖ سوِي ور ته وُویل چه په هره خبره بانډِ خلق خبردار کول ښه نه وِي
نه ګوريږِ چه آئینه څه صاف رنګ لرِي لیکن چه نزدي ور ته خبري وکړي شي
او اسویلي پرِ وکیږِي نو خړه شي ❖ او بل دا دري ځیزَ پټ بهتر دِي یو
زر چیل بل وقت د تللو بله لار د تللو ❖ ښناورو ور ته وُویل چه جرګه
او مصلحت خو سنت دِي او ته داسي پرده کوي چه نور پر نه کیږِي ❖ سوِي
ور ته وُوِ چه رښتیا دِي مګر هغَه ځا سره چه په دي یقین وِي چه دا مصلحتِ
ځما به دښمن ته خبر نه رسوِي ❖ حاصل دا دي چه حال يُ و نه وایه او
په دي فکر کښِ شوه چه د زمرِي څه علاج وکړم ❖ هر کله چه وقت د تللو
شه نو په هغه ساعت لاړِه نه شوِه تکوتي معطله شوله ❖ هلته کښِ زمري
په غضب شه او وئ وِیل چه څه لویه ټکي را بانډِ وشوله چه دَ داسي ناکارَ
خلقو م واوریدل او که بیا ژوندون وِي په عمر به د دي خلقو په وعده باور
وُ نه کړم ❖ دي په دي قهر او غضب کښِ لار ګورِي چه ځوګ راځي او که

نه راځي

نه راځي ؞ او سوبه درو درو په لار روانه ده او خان سره فکر کوي خو چه
زمري ته ور ښکاره شوله نو هسې ګرځيدئ ور وُرغلبيده چه زيات له دغه ئې
طاقت نه وه ؞ زمري ور ته تربو وچولي وښووه او وئې ويل چه اي بدذاتي بيوقوفې
دا ولې دې دومره ډيل وکړ شکر نه کوئ چه زه په يوه سوبه باندې صبا بيګا
دوه وقت تيروم او په هغه کښې هم لا تاسو سرپښي کوئ را باندې ؞ چه دا
وعده م نه وه کړې نو چه زړه به م غوښته هغه ځيز به م خوړم او چه
ستاسو په طمع شوم نو لار ته م په کتل کتل دوه سترګې خلور شي نو هاله
را ته يو پوټې غوښنه را ورسوئ ؞ سوبې ور ته وُويل چه مهربانَ که عذر
قبليږي خو زه به ئې بيان کړم او که اجازت د ويلو نه وي نو نه به ئې وايم ؞
زمري وُويل چه چپ شه احمقي ته به څه بې او ستا عذر به څه وي ؞ سوبې
ور ته وُويل چه مهربانَ ته بادشاه يې نو که چرې ځما غُندِ مظلومې عرض واورې
چه به ما باندې په لار کښې څومره سختې تيرې شوې دې نو ستا پر هيڅ مرتبه نه کميږي
او ځما پر د زړه تسلي کيږي ؞ زمري وُو چه بې شکَ عرض آورم ليکن چه د
سريتوب شان عرض وي نو د هغه غور هم کوم ؞ سوبې وُويل چه مهربانَ
بلا دې واخلم صبا له وقتَ يو زه او يوه ځما ملګرې سته د ميلمستيا د پاره را

کړه که وِي خو ارس به يې تماشه وکړي او که نه وِي خود به تا مړه پوره ښم چه بل څوک دا ښې دروغ نه وائي ـ حاصل دا دي چه زمري او سويه دواړه لنن شول يو کوهي ور چه د هغه خوا ته ورسيدل نو سويه تر هغه ورسته شوله ـ زمري وويل چه ولې پاتې شولې ـ سويې ويل چه مهربانه زما رنګ زيړ ګرځي چه څنګه له ويرې نه زيړ شه ـ زمري ورته وويل چه څه سبب دي ـ سويې ووې چه په دې کوهي کښې هغه زمري دي او زما ملګري هم سلامته ور څخه دَه ـ زمري وويل چه راشه را ته يې وښيه ـ سويې ووې چه زه ويريږم او که ته ما په غيږ کښې ونيسې نو به نه ويريږم ـ زمري سويه په غيږ کښې ونيوله چه کوهي ته ور ښکاره شه څپل ځان يې په اوبو کښې وليد يقين يې راغې چه د رښتيا بل زمري دي جور سويه يې پريښوده او کوهي ته يې ور توپ کړ خود بيرته راختلې نه شه او ښکته اوبه ډېرې وې په کښې مړ شه ـ سويه راغله خپلو عزيزانو ته يې د خوشحالۍ خبر وکړ ځناور ټول خوشحال شول او د سويې هر چا صفت کاوه او شاباشي يې پرې وايه ـ

## حکايت ديرشم

يو سوداګر وه چه نيت يې د سفر د هندوستان وکړ ـ نو د کور لوي او واړه

ئې را جمع کړل او د بېل بېل نه يې پوښتنه وکړله ور ته يې وېل چه وُوايه چه
تا له څه څيز له هندوستانه راوړم ❊ هر چا به ور ته هغه څيز ياداوه چه څه
به يې خوښ وه ❊ او د دغه سوداګر کره يو طوطي په پنجره کښ بند وه نو دي
هغه له ورغي ور ته يې وُوېل چه وُوايه اې طوطي تا له څه را وړم ځکه چه
زه هندوستان له ځم او ته هم هندوستانی يې نو وُوايه چه څه څيز دِ د
خپل وطن خوښيږي ❊ طوطي ور ته وُوېل چه ځما دپاره دا قدر مهرباني وکړه
چه فلاني ځنګل له ور شې نو هلته کښ به طوطيان په ونو ناست وي اول
ځما سلام ور باندِ وُوايه او پس له سلام ور ته وُوايه چه هغه فلاني طوطي
چه ستاسو آشنا دي هغه ځموږ کره په پنجره کښ بند دي او وېل يې
چه عجيبه دوستي دَه چه زه په بند کښ يم او تاسو بې غمَ سېلونه کويُ ❊
نو هر څه چه هغوي جواب درکړ نو هغه ما ته وُوايه ❊ سوداګر وُوېل چه
ډېره ښه ده دا خو به ضرور وکړم ❊ سوداګر اسباب طيار کړ ځان ئې سنبال
کړ هندوستان ته روان شه ❊ چه په يو ځنګل باندِ ورغي په هغه ځاي کښ
طوطيان يې وليدل جوړ د هغه خپل طوطي خبره ور ته ياده شوه له ځان سره
يې وُوېل چه طوطيان دلته ډېر پيښ شوي دي نو مناسب دي چه خپله عماده

خلاصه کړم. چوړ په هغه ځاي ورربده او وي ويل چه ي طوطيانو فلاني
طوطي څما کره په پنجره کښ بند دي هغه اول تاسو ته سلام ويلي دي او بيا
ته سلام يُ ويلي دِي چه څه مناسب دِي چه زه په بند کښ بي ځان. يم او
تاسو په سيلونو کښ خوشحال ګرزيِ. چه دا خبره ده خلاصه کړله چوړ په هغوي
کښ يو مشر طوطي وه نو هغه د دي خبري په آوريدو سره لرزيده ريږديده
رپيده هم په هغه ساعت مړ شه کوز په زمکه ولويده. سوداګر چه دا کار وليد
نو ډير خپه شه او په دغه خپله خبره ياندِ پښيمان شه او ځان خپل يُ
ډير ملامت کړ ويل يُ چه څه له م دا کار کاوه چه دا عاجز بي هيڅ هلاک
شه معلوميږي چه د دي طوطي او د هغه طوطي سره ډيره خپلوِي او آشنائِي
وَه او مينه محبت يُ سره ډير وُو نو ځکه دي د هغه په خفګان او په ارمان
باندِ دستي مړ شه. يو ساعت زهير ولاړ وه بيا خپه روان شه. چه
سود سودا خپل يُ برابر کړل نو بيرته په طرف د کور خپل وګرزيده چه په خير
سره کور ته نوت لوي واړه وله ئول را پاڅيدل او ورته يُ ويل چه په خير
راغلي خيرنونه دِ راوړل الحمد لله شکر دي چه صحيح سلامت روغ جوړ خپل
کور ته راغلي. سوداګر هم زُوِي چه ډير ښه ساعت دي ثنا خداي له ده

چه ناسوړ ټول روغ جوړ په خوشحالۍ سره وموندلئ ۰ یو ساعت ئې سره
پوښتني یو له بل نه کولې بیا د هر چا دپاره چه ئې څه راوړي وُو بیل بیل ته
ئې په مناسب سره ورکړل چا له پنړي وي چا له لونګۍ وَه چا له د قمیص
دپاره ټوکې وه چا له د پړنوک دپاره ټوکړه وَه چا له د پګړۍ دپاره سلامت تان
وه چا له وړکوټي پټکي وه د جنګو دپاره د پښو جوتۍ او د په سرولو دُپټي
او د زړو ښځو دپاره کوښي او د سر پړونې هر څوک ئې په خپل خپل شان
په اندازه سره وپالل ۰ طوطي ور ته وُویل چه صاحبَ د هر چا کار
وشه نو اوس ځما به هم څه وُوایي او که نه ۰ سوداګر ور ته وُویل چه ربښتیا
خبره دا دَه چه زه ستا په هغَه خبره رَسول بانډ هم پښیمان یم نو بیا
تا ته لا څه د هغوي خبر ورسوم ۰ طوطي وُوِ چه دا هیڅ خبره نه دَه خبر
خو سړي رسوي نو پښیمانتیا څه دَه ۰ سوداګر وُویل چه په نه ویل کښِ ما
ته خیر ښکاریږي ۰ طوطي ویل چه ډیره ښَه دَه خو تا پخپله مهربانې کړي
وَه ویل دِ چه طوطي ته څه غواړي او اوس وایې چه نه وایم نو چه نه
وایې نو شل ځلَ ئې مه وایه ځما خو څه زور نه دي ۰ سوداګر یوه شه چه
دي چنډ شه نو وُ ئې ویل چه قصه داسي وَه چه زه لاړم په یو ځنګل کښِ

طوطیان وُو هغو ته مې ستا سلام ؤرایه او ستا ارمان او خفقان مې بیان کړ
په هغو کښې یو طوطي وه خو چه ما خبره خلاصه کړله جوړ هغه فی‌الحال مړ
شه ؛ نو زه پښیمان شوم زړه مې ډیر خپه شه ما وُویل چه افسوس دي چه
دا خبره مې نه وي کړې نو څنګه به بنه وُو ؛ طوطي چه په پنجره کښې دا خبره
واوریدله نو په ده باندِ هم لړزیدل او ریږدیدل او رپیدل راغلل دستي پریوت
په پنجره کښې مړ شه ؛ چه سوداګر ور ته وکتل نو په ژړا شه چه ډیر افسوس
او بې‌شانَ فریاد ئې وکړ نو طوطي ئې له پنجرې نه بهر وغورځاوه ؛ او طوطي چه
په زمکه پریوت له هغه ځایې نه او چت والوت پورته په یو ځایې باندِ کښیناست ؛
سوداګر چه وکتل یو ساعت حیران شه بیا ئې وُویل چه ای طوطي هر څه چه
وشُو هغَه خود وشُو مګر په دې حال خو ما هم پوه کړه چه دا څنګه
کار وه ؛ هغَه طوطي ور ته وُوِ چه هغه ما له خبر را ولیږه او نه پرِ نه
پوهیدلې د هغه مطلب دا وه چه ته ځان مړ کړه نو خلاص به شي او که
ژوندي یې او خوږې خوږې خبرې کوې نو د خلاصې امید مه کوه نو خود زه ستا
له ویلو نه په مطلب پوه شوم هغَه شان کار مې وکړ نو خلاص شوم ؛ اوس داسې
وایم چه ستا نمک مې خوړلې دې ما وبخښه زه رخصت یم ؛ سوداګر وُوِ چه

ما نجښنلي يي د خداي په امان اوسي ، طوطي روان شه ويل ئي چه السلام عليکم
سوداګر ويل چه وعليکم السلام ،

# حکايت يو ديرشم

يو عالم د يو بادشاه د وړاندې خبري کولي ناګهانه په مينځ د خبرو کښ ئي
وويل چه په هندوستان کښ يوه ونه ده که د هغي وني ميوه څوک وخوري
نو هغه سړي به نه زوړ شي او نه به مړ شي ، بادشاه چه دا خبره واوريدله
جوړ په هغه ونه پاند مين شه او سودا واخست چه دا به څه رنګ پيدا شي ،
ليکن د هغه عالم نه ئي پوښتنه نه کوله چه دا ونه به چرته وي او څنګه به
وي ، مګر چه د ده پر ډير باور وه هغه سړي ئي په طرف د هندوستان
رخصت کړ او ډير مال ئي وله ورکړ او ورته ئي وويل چه دا دولت لکوه
او تور به هم دو لېږم څو هاله بيرته را نه شه چه ماله د دغي وني ميوه راوړي ،
قاصد روان شه چه هندوستان ته ورسيده نو له خلقو نه به ئي هر ځاي
کښ پوښتنه کوله او ويل به ئي چه هغه کوم ځاي ده چه سړي ئي ميوه
وخوري نو بيا هميشه ژوندي وي او پيچري نه زړيږي ، چه خلقو به دا خبره
واوريدله نو چا به ور پوري خندل چا به ور پوري ټوقي کولي چا به ويل چه

دا لیونی شوي دي چا به ویل چه مونږ ته معلومه نه دَه مګرچه دا بنه سړي ور پسي ګرزي نو معلومیږي چه دا به رښتیا چرته وي ۰ چا به ویل چه په فلاني ځنګل کښ که چري وي نو وي به او بل ځاي م ګمان نه کیږي چه ګندِ پیدا شي ۰ چا به ویل چه په فلاني ځنګل کښ یوه لویه ونه په هسي شان سره دَه چه سر ئي چا ته نه ښکاریږي او بیخ ئي هم نه معلومیږي او میوه ئي هم چا له په لاس نه ورځي که چري هغه وي نو شک نشته ۰ داسي هر چا به ور پوري مسخري کولې او دي غریب به په ځنګلو او په غرونو او په میرو او په بیابانونو ګرزیده ۰ حاصل دا دي چه یو خوا بل خوا وهلې ورستو بنکته پورته ډیر طلب ئي وکړ مګر هیڅ په حال پوه نه شه نو بیرته راوګرزیده چه وطن ته راته ډیر خپه ره اوځان سره ئي ویل چه پادشاه ته به څه عذر کوم ۰ چه په یو ځاي کښ ئي شپه شوه په هغه ځاي کښ ئي واوریده چه یو سړي ویل چه څمونږ په دي کلي کښ لوي عالم دي او بي شانَ بنه سړي دي ۰ دي قاصد په زړه کښ وویل چه باري ورشم که څه دعا راته وکړي نو دستي پاڅید هغه عالم له ورغي ۰ چه ملاقات ئي ور سره وشه نو ور ته ئي وویل چه صاحبَ دعا را ته وکړه چه ایمان م خداي سلامت کړي

او په خير سره وطن ته ورسيږم ✤ هغه دعا ور ته وکړله او بيائي تړ پوښتنه وکړه چه چرته تلي وي ✤ هغه قاصد ور ته دا ټوله قصه ووبله ✤ هغه عالم چه واوريده نو ور ته ئي وويل چه تاسو د هغه خپل عالم په خبره نه يئ پوه شوي ✤ هغه ونه بله نه ده هغه ونه د علم ده يعني د علم ميوه چه څوک وخوري نو هغه سړي په هميشه ژوندي وي ✤ او د هميشه ژوندون څه معني ده هغه معني دا ده چه خداي ورته ښکي بدي ور ته معلومه شي د نيکئ عمل کړي او له بدئ نه ځان ساتي کتابونه تصنيف کانړ شاګردان تر پاتي شي نو هر وکه دا سړي په تن مړ شي هم هيڅ غم ئي نشته ځکه چه هلته ئي روح ژوندي وي او دلته ئي نوم ژوندي وي او ثواب ئي داسي کيږي لکه يو ژوندي سړي چه نيکي کوي او ثواب ئي کيږي ✤ قاصد ور ته وو چه صاحب مړ بړ هم دومره پوهيږو نادانان نه يو که چري هغه علم ياد کړي وي خو مړ بړ به پوه شوي وو چه علم وايي ولي هغه د ټولو خلقو د ورانړ ونه ياده کړي ده او په دي خود هر څوک پوهيږي چه علم د يو څيز نوم دي او ونه د بل څيز ✤ هغه عالم وويل چه ته يا پوه نه شوي تا له مثال پکار دي چه ښه پوه شي ✤ ګوره يو سړي وي نو د چا پلار وي او د چا زوي وي او د چا

نمسي وِي او د چا نيکه وِي او د چا خوريي وِيا او د چا ماما وِي او د چا تره وِيا
او د چا وراره وِي او د چا ترورزي وِي او د چا تربور وِي او د چا درور وِيا او
د چا آشنا وِي او د چا دښمن وِي او د چا دوست وِي ◦ نو اوس ته گوره چه
هم دغه يو سړي دی او هر نوم له دي نومونو نه چه په خپل ځاي کښ
ور ته څوک وايي نو ويلي ښي که نه ښي ◦ هغه قاصد دوِ چه بي شکــ
ويلي ښي ◦ نو هغه عالم وويل چه داسي علم ته هم دواړه نوم ويلي ښي
که دِ خوښ وِي نو ور ته علم وايه او که دِ خوښه وِي نو ور ته د ژوندانه
ونه وايه دواړه نومونه يُي برابر دِي هيڅ فرق په کښ نشته ◦ هغه قاصد چه
دا خبري واوريدلي تسلي يُي د زړه وشوله او له عالم نه يُي رخصت واخست
او د خپل کور په طرف را روان شه ◦ چه ښهر ته ورسيده بادشاه
ور ته په اميد کښ وه چه دلبار له ورغي بادشاه تر پوښتنه وکړله ويل
يُي چه ووايه ميوه دِ ومونده او که نه دِ ده موندلي ◦ قاصد ور ته له سره
قصه شروع کړله خپل ربړيدل او په منګونو او په غرونو او په بيابانونو
گرزيدل او دخلقو مسخري کول ټول حال يُي ور ته بيان کړ ◦ چه بادشاه
واوريده نو ډير خپه شه و يُي ويل چه ستا ربړ عبث شه او

ځما مطلب و نه شه * پس له هغَه قاصد ور ته د هغَه عالم خبره په
ښه شان سره بیله بیله جدا جدا واوروله * چه بادشاه واوریدله ډیر
خوشحالَ شه او قاصد له ئې د کرزیدلو له مشقت نه دوچند دولت ورکړ
او پس له هغَه باقي عمر د علم او د عالمانو په ساتنه او په پالنه
کښ شه * او حکم ئې وکړ چه هر څوک دِ واورِي چه علم نه په واړه دي او
نه په زاړه دي خو زده کړه دِ کوِي که لوي وِي او که وړوکي وِي *

# حکایت دوه ویشتم

یو سوداکر سړي یو څو یارونه د وریښمو یو ترک ساروان ته وسپارل او
ور ته ئې وُویل چه دا وریښم استامبول ښهر ته ورسوه * او دي هم وریښي روان
شا مکر چه ینمه لار ئې وُوهله نو هلته تاجرَ شه او کاروان ته و نه رسیدهٔ *
او چه دي ورستوه پاتي شه او په نیمه ځیله ور نه رغي نو هغه ساروان کمان
وکړ چه کنړه سوداکر مړ شه * جوړ لاس ئې د وریښمو په خرڅولو پوري کړ نول
ئې خرچ کړل او اوښان ئې هم ور کړل او د ساروانئِ زړوکي ئې بدل کړل * چه
پس له څو مُدي سوداکر ور ورسیده او ډیره پوښتنه ئې وکړله نو هغه ساروان
ئې بیاموند نو ور ته ئې وُویل چه راوړه که نه ځما مال دِ څه کړ * هغه ور ته

وُویل چه زه نه تا پیژنم او نه دِ له مالَ خبریم * هغه سوداگر ور ته وُوِ چه
څما وریښم دِ په اوښانو په مزدوریٔ راوړِي نه دِي څه * هغه ور ته ویل چه
ته خطا شوي یې څه په ساروانانو ډیر گرزه نو ما ته څه وایي * عاقبت پس له
دیرې جگړي نه مقدمه قاضي ته ورسیدله * قاضي له سوداگر نه پوښتنه وکړه
چه وایه څوانَ ته څه دعوي لري * سوداگر وُویل چه ما د وریښمو بارونه ده
ته حواله کړي وُو ویل م چه دا په مزدوریٔ استامبول ته ورسوه اوس چه یٔ ترِ
غوارم دي یٔ نه راکوِي * قاضي بیا له ساروان نه پوښتنه وکړه چه ته څه
څواب لري وُوایه * هغه ویل چه زه څه وُوایم ما هډو ساروانیٔ کړي نه دَه نو *
قاضي بیا سوداگر نه وُویل چه ته شاهدان لري * هغه ویل چه صاحبَ په دي
معاملو کښ څوک شاهدان نه نیسي نو * قاضي وُویل چه څیځِ ورک شيِ
احمقانو دا څه عبث قصې را نه کوئ * چه دوي روان شول نو قاضي آواز
وکړ ویل یٔ چه اي ساروانَ ودریږه خبره کوم * د ساروان فکر نه وه زر یٔ
مخ ورستو را واړاوه * قاضي پوه شه چه دا ساروان دي نو بیرته یٔ وگرزاوه او
مال یٔ ترِ نه سوداگر له واخست او د منکریدو په سبب یٔ گنهگاره ور
نه واخستله او سزا یٔ پوره وله ورکړله *

# حکایت دري دېرشم

په یو ځای کښې میلو او ښامار په جنګ سره نښتي وو مګر میلو یې ډېر بې طاقت کړی وه ؛ ناګهانه یو ځوان پرې پېښ شه چه دوي یې ولیدل نو فکر یې وکړ چه ښامار لوي ظالم دی نو مناسب دي چه د میلو ملګري شم او ښامار په دواړو تنو ووژنو ؛ او د میلو چه په ځوان نظر ولګېده نو فریادونه او اشارتونه یې ور ته وکړل ځوان توره ووېستله او ور دوه یې کړ په ښامار یې ګذارونه وکړل ښامار مړ شه او میلو یې ترې خلاص کړ ؛ میلو فکر وکړ چه دي سړي ځما سره ډېر ښه وکړل نو اوس ما له ښایي چه د ده خدمت کوم ؛ نو هر خوا ته چه به ځوان ته دغه میلو به ور سره جخت یو ځای ګرزېده ؛ یوه ورځ دغه ځوان له خوب ورغي اوده کېده خو چه سر یې ولګاوه او ځملاست نو یو سړي پرې راغي ور ته یې وویل چه ځوانه دا میلو دې څه لګېږي چه ته ملاست یې او دي در ته ناست دی ؛ ځوان ور ته د ښامار قصه وکړه او ویل یې چه اوس رم آشنا شوي دي نو خود را سره یو ځای ګرزي ؛ سړي ور ته وویل چه ځوانه دا د احمقانو کار دی چه ته یې کوي په ده پورې زړه مه تړه او په هر شان چه کېږي رخصت وله ور کړه او ځان ترې خلاص کړه ؛

خوان ور ته ووېل چه دا د زړه را باندې نه بنه کېږي ځکه وايي او که نه وي
نو ته گوره چه د صحرا ځناور دي او څه رنگ ځما سره مينه کوي ۞ هغه
ووېل چه زه داسي نه وايم چه د ده تا سره مينه نشته مگر وايم چه دي
بي عقل دي هغه د ده مينه به ستا په حق کښ غم شي ۞ بلکه ما سره
راځه چه سره يو جنس يو زه به د هم خدمت کوم ۞ خوان ووېل چه ور څه
خپل کار کوه ۞ هغه سړي ور ته ووې چه ځما کار هم دا دي چه تا له دي بلا
نه خلاص کړم او تا له مناسب دي چه دي پرېږدي او ما سره ملگري شي
ځکه چه که چرې زه ډېر ناکاره شم نو له ميلو نه خو به بنه يم او دا در
ته وايم چه د ده په آشنائۍ کښ ستا خير نشته ۞ خوان ووې چه ځما له
غمه ته خلاص يې هيڅ فکر مه کوه خو اوس ما پرېږده چه خوب وکړم ۞ هغه
سړي ور ته ووېل که خوب کوي نو د يو سړي په خوا کښ اوده بنه او د
ميلو په خواه کښ مه اوده کېږه ۞ خوان ور ته شا کړله او زړوکي يې په ځان
خور کړ او مخ يې تر پت کړ ۞ د هغه سړي ور باندې زړه وسه لاس يې ور
واچاوه ويل يې چه پاځه نيکبخته ستا د بنو وايم ۞ خوان ور ته ويل چه
ورځه ځما د بنو مه رايه ۞ حاصل دا دي چه سړي ډېر څه وکړل خو خوان

ور سره لاړ نه شه آخر تر روان شه او ور ته ئې وويل چه ته پوه نه شوې
او ځان دِ ډوب کړ ÷ چه هغه سړي لاړ شه نو ځوان اوده شه او ميلو ور
ته ناست دي څوکۍ ئې کړي ÷ ناګهانه يو مچ راغي او د ځوان په مخ کښېناست
ميلو لاس وخوځاوه مچ ئې له مخ نه وشاړه هغه مچ بيا راغي ده بيا وشاړه
چه يو څو ځلَ ده وشاړه او هغه نه منع کېده جوړ قهر ورغې دستې لاړ
شه يو لوي کاڼي ئې د ځرندي د پل همره راوړ او هغه مچ د ځوان په مخ
ناست وه چه ئې وله کاڼي را پرېښوو نو مچ او مخ ئې دواړه ذرې ذرې کړل
د ځوان او د ميلو آشنائې پوره شوله ÷

بي مطلبَ د احمقو کار و بار ÷ همره نه دي چه ئې څوک وکاندِ شمار
که ښېګړه څوک د ځان سره کوينه ÷ د جاهل سره دِ نه دروِمي په لار

## حکايت څلور ديرشم

يو سړي زرګر له لاړ شه او ور ته ئې وويل چه ما له کنډه راکړه چه زه
پرِ وړي وړي ټوکړي د زرو وتلم ÷ هغه زرګر ور ته ويل چه غلبيل ځما بل
چا وړي دي ÷ هغه سړي ور ته ووِ چه ته څه وايې او زه څه وايم ÷ زرګر
وويل چه جاړو م په دوکان کښ نشته ÷ هغه سړي ور ته وويل چه ما

ته معلوم يي چه کونږ نه يي خبره آوري او سره د دي زه له تا ته يو ځمځر غوارم او ته را ته بل خبر يادوي ÷ زرګر وُ چه بنه آورم چه ته کنله غواړي مګر وبينم چه ستا لاس رچيږي او دا زر به در نه پريوزي ÷ نو بيا به وايي چه جارُو راوړه چه د زرو بوټي پرِ را ټول کرم نو بيا به غلبيل غواړي د چاڼولو دپاره ÷ نو ما څکه د جارُو او د غلبيل عذر وکړ چه تا لايق نه وبينم چه دغه کار وکړي نو خواه مخواه به دي دوارو ته حاجت پريوزي او دا دواړه خود نشته ÷

## حکايت پنځه ديرشم

که په زور که په زاريُ ِوي که په جنګ ــــ څوک د بل نصيب خوړي نه شي هيڅ رنګ
هر سړي ته خپلا خپل قسمت رسيږي ــــ په کوشش نه څه کميږي نه زياتيږي

لکه يو دهقان وه چه يو کال يُ غله ډيره وشوله نو د دري سوو اشرفو يُ نرِ په يو ځاي خرڅه کړله او هغه اشرفيُ ِ به يُ سنبالي ساتلي او په هيڅ کار کښ به يُ نه لګولي ÷ يوه ورځ يُ هغه اشرفيُ ِ را واخستلي او په لاس کښ يُ آړولي را آړولي ناګهانه يو آشنا ور ته په کوڅه کښ آواز وکړ ÷ چه ده د آشنا نعرهِ واوريدله نو اشرفيُ ِ يُ په هميايُ ِ کښ واچولي او هميانيُ ِ يُ منګي ته

ور وغورزوله او آشنا له روان شه ÷ ولي چه دي ور وت نو ښځي ته ئې ووې چه
په تلوار ډوډيۍ پخه کړه ÷ ښځي چه د پخولو فکر کاوه کوز کښن اوبه نه
وې حيرانه په دروازه کښن ودريدله ويل ئې چه کُندِ که څوک راشي چه اوبه
راوړي ÷ ناګهانه يو قصاب د غوايانو د آخستلو دپاره ګرزيده په دروازه
پيښن شه ÷ ښځي ور ته سوال وکړ و ئې ويل چه لکوټي ما له دا منګي ډک
کړه او راوړه ÷ قصاب منګي واخست اوبو له روان شه چه په لارِ ته په
منګي کښن ئې کړ کوړ داوريده چه ور ته ئې وکتل هميانۍ ئې په کښن وليدله
چه را وا ئې خستله او اشرفۍ ئې په کښن وليدلي نو ډير خوشحال شه او و
ئې ويل چه ځيل کسب به کوم او دا به سختي ورځي دپاره اماني کيږدم ÷ جوړ
اوبه او منګي ئې پريښنول او لار شه هغه ځيلي روپيۍ چه ورځخه وي په هغو
ئې يو څورب غوايه واخست او روان شه ÷ چه په وړاندِ ته فکر ئې کاوه
چه دا اشرفۍ کوم ځاي کيږدم ÷ چه ډير فکرونه ئې وکړل نو آخر دا مصلحت ئې
خوښن شه ويل ئې چه دا هميانۍ سلامته د دي غوايه په خولي کښن ورکړم چه
ګيډي ته ئې تيره شي ÷ چه بيا ئې حلال کړم نو خود هميانۍ به تر سلامته
بيرته را وباسم ÷ پس له هغه غوايه ئې را و پرزاوه او هميانۍ ئې په ډيرو خوارو

سره په خولي کښ کښيښوه او په کوڅي کښ يې ور ننه ايستله * چه غوايه
يې روان کړ په لار کښ وله زوي مخي له راغي غوايه ترِ هغه کور ته بوت
او دي په بل کار پسي روان شه * او هغه دهقان د هغه آشنا سره جلب
کاوه ناګهانه د قصاب زوي څخه يې غوايه وليد * او حال داسي وه چه ده
نذر منلي وه ويل يې چه زه به يو غوايه حلالوم جوړ دهغه قصاب د زوي
نه يې غويه واخست کور ته يې راوست * چه يو ساعت تير شه د اشرفو
تفحص يې وکړ ويل يې چه دلته په منګي کښ مِ هميانيُ د اشرفو ايښي وَه
هغه څه شوه * ښځي ور ته وويل چه نوره خبر نه يم مګر دا خاي يو سړي
له مِ منګي د اوبو دپاره ورکړی وه دلي نه هغه سړي راغي او نه يې منګي
راوړ * دهقان پوه شه چه اشرفيُ سړي يوړلي ډير خپه شه آخر صبر يې
غوره کړ * پس له هغه غوايه ئې حلال کړ چه ټک ټوک يې کړ او غوښي يې
طياري کړلي او لري کښي يې صافول ناګهانه يې هميانيُ په کښ بياموندله له حدَ
زيارت خوشحالَ شه * پس له دغه کارَ هميانيُ به يې د ځان سره ګرزوله په ملا
پوري به يې مدام تړلي وَه يوه ورځ دهقان بهر ووت په يوه چينه يانِ يې
غسل کاوه چه له لښلو نه وزګار شه نو زړوکي يې واغوستل او هميانيُ يې

په هغه ځاي هيره کړله ÷ چه دي له هغه ځايَ لاړ شه جوړ يو شپون د کړو
سره راغئ چه د ېچتي په غاړه يُ هميانيُ وليده وړ د يُ کړ او زرئ واخسته ÷
چه له هغه ځايَ په درده شه او اشرفيُ يُ وشمارلي ډير خوشحالَ شه ÷ بيو
وار يُ فکر وکړ چه نوره مزدوري نه کوم بيا يُ فکر وکړ ويل يُ چه د چا
به را بانډ گمان وشي چه ده څه موندلي دي نو مزدوري بنه دَه چه کوم يُ ÷
پس له هغه هميانيُ يُ په تخرګ کښ ونيوله او په گډو پسي روان شه ÷ او
دهقان ته چه اشرفيُ ور يادي شولي په جلديُ ور پسي لاړ ته يو خوا بل خوا
وکرځيده ولي هيڅ په حال يُ يوه نه شه ÷ چه کور ته راغئ بيځي ته يُ حال
ووِ دواړه يو ساعت خپه کښيناستل بيا يُ سره وويل چه انديښنه بېکار نه
دَه هر څه چه نصيب دِي هغه پيښيږي خو مصلحت په دي دي چه بيا به
مال نه جمع کوُو هر څه چه راځي هغه به خورُو ÷ او شپون چه هلته کښ
کډي څرولي ناګهانه له يو طرف نه پير سواره راغلل ÷ شپانه د سورو له ويري
هميانيُ کوهي ته ور وغورزوله و يُ ويل چه په قرار به يُ بيا وباسم ÷ چه
شپون کډي رواني کړلي ناګهانه هغه دهقان د کوهي په غاړه راغئ چه اوبه
يُ څښلي پکريُ تر په کوهي کښ ولويدله ÷ چه پکريُ پسي کوهي ته ور کوز

شه همیانۍ د اشرفو ډکه يې بیامونده له شکر د خداي وايه او کور ته روان شه ❊ چه اشرفۍ يې و شمارلې پوره دري سَو وختلې جوړ لاس يې پرې پوري کړ په بنه شان يې خرڅ کاوه او اشرفۍ يې لګولې ❊ چه څو ورځې تيرې شولې نو هغه شپون د هغه دهقان میلمه شه چه ډوډۍ ته سره کښېناستل شپون به د غم خبري کولې او ساړه ساړه اسويلي به يې ولېستل ❊ دهقان ترې پوښتنه وکړله ویل يې چه دا ولې داسي زهير يې ❊ شپون ور ته د سوره او د کوهي او د همیانۍ قصه وکړله ❊ دهقان چه دا خبره واوریدله په تلوار بڼنجي له لاړ شه او ور ته يې وویل چه مونږ ګمان کاوه چه دا مال حلال دي ليکن دا پردي وخوت ❊ هغه چه ولګیده هغه خود لاړ شه او دا باقي هر څومره چه وي راکړه چه خاوند له يې بوسم ❊ چه بڼجي را واخستلې سل اشرفۍ باقي وې هغه يې وله ورکړلې سپون واخستلې روان شه ❊ چه کور ته لاړ شه نو يو لرګي يې تش کړ او دغه اشرفۍ يې په کښې واچولې او لکه همسا به يې د ځان سره ګرزاوه ❊ يوه ورځ په غاړه د يو سيند ګرزیده هغه لرګی ترې اوبو ته ولوېده جوړ اوبو يوړ ❊ او دهقان د اوداسه دپاره د سيند په غاړه ناست وه جوړ هغه لرګی يې ولید نو يې راوېنو کور ته يې يووړ ❊ يوه ورځ يې هغه لرګي په

نبر چاوه چه گذار ئې ووکړ اشرفۍ ترِ پرېوتلې چه و ئې کتلې پوره سل وختلې نو بيا ئې هم په هغه شان لګولې ۰ څو مده پس بيا ئې شپون وليد چه بد حال او خراب رنګ ئې وه ۰ دهقان ترِ پوښتنه وکړه چه دا ولې ۰ هغه ورته د همسا او د اشرفو او د سپينو د وړلو حال ووايه ۰ دهقان ترِ پوښتنه وکړه چه دغه اشرفۍ دِ چرته مونډلې وې سپون ور ته د چيني د غاړې د همسايۍ قصه ووېله ۰ دهقان ووِ چه هغه په چينه هم خما وَه او له کوهي نه هم ما وکښلې وَه او هغه لړګي هم ما مونډلې وه خپل مال ما ته امانت سلامت را ورسيده زه خوشحالَ يم ته خپکان مه کوه ۰

## حکايت شپږ ديرشم

د سړي دښمنان چه په کورکښ مخالف شي نو دي په آرام سره گذران کوي ۰ لکه يو شيخ نيکوکار او پرهيزګار وه چه جدا له خلقو ئې کوټنړۍ جوړه کړې وَه او مدام صبا ښمابښام په عبادت د پروردګار خپل مشغول وه او لاس ئې له کارَ او له کسبَ د دنيا وېښخلي وُو ۰ يو مريد وله لنګه غوا ورکړله ولې هسې غوا وَه چه په پيو به ئې تالوُ د اميد خوږيده او په لسيۍ به ئې لښکر د ګرمۍ خوږيده او په غوړو به ئې بيخ د خشکۍ خوت ۰ او په هسې شان څربه وَه

چه په تشو لیدو به يُ سري خوشحالیده ٭ چه دغه غوا د شیخ په کور کښی
ووریده نو یو غل په نیت د غلا بوه شپه ور روان شه او یو شیطان په
صورت د سړیٖ ور سره په لار کښ ملګري شه ٭ غله تر پوښتنه وکړه ویل
يُ چه څوک یې او چرته ځي ٭ هغه ورته وُوِ چه زه شیطان یم او په شکل
د سړي شوي یم د هغه فلاني شیخ کوټنړيُ له ځم ٭ ځکه چه اکثر خلق د ده
د مریديُ په سبب څمونږ له فساده خلاص شول نو اوس م نیت دي چه يُ
مړ کړم ٭ بیا يُ له غله نه پوښتنه وکړله ویل يُ چه ته څوک یې او په څه پسي
روان یې ٭ غله وُوِ چه زه هم ځم دغه شیخ څخه یو غوا ده چه يُ تر پټه
کړم ٭ شیطان ورته وُوِ چه دا خو ډیر ښه کار وشه راځه چه دواړه سره ځو٭
پس له هغه دواړه روان شول د شیخ کره ورغلل چه ور ورسیدل شیخ اوده شوي
وه ٭ غل فکر وکړ و يُ ویل چه که دا شیطان وړښي شي او په ده ګذار وکړي
نه بایده چه شیخ بیدار شي او ځما کار پاتي شي ځکه چه نور خلق به په شور
د ده را جمع شي ٭ او شیطان وُوِ چه که دا غل غوا بیاپي نو خواه مخواه دروازه
به لري کوي او چه دروازه لري کیږي نو ضرور به د ښني چور آواز وکړي او په
آواز د ښني د چور به دا شیخ ویښ شي نو خود ځما به پر لاس و نه رسیږي٭

بیا شیطان غله ته ووچه ته وار وکړه چه زه دي مړ کړم نو بیا ته دا غوا بیایه ✤ غله ووچه نه ته وار وکړه چه زه غوا بوزم نو هاله بیا دي وژنه ✤ حاصل دا دي چه یو د بل بي سره نه منل جوړ دواړه په جنګ شول چه پرزول بي سره ونښلول نو غل کمزوري شه خو چه طاقت بي ورک شه نو زر بي شیخ ته آواز وکړ ویل بي چه شیخ صاحب را ورسیږه شیطان راغلي دي تا وژني ✤ شیطان ووچه را وچلیږه دا غل راغلي دي ستا غوا پټوي ✤ شیخ د دوي په جګړه را ویښ شه چیغي بي کړلي د کور محلت خلق را ټول شول شیطان او غل دواړه وتښتیدل شیخ له مرګ خلاص شه ✤

# حکایت اووه دیرشم

د چینجخي او د مږدي سره آشنائي پیدا شوي وه نو د اوبو په غاړه به سره دواړه یو ځاي کیدلي او خپله مشغولا به بي کوله او ورځ په ورځ به بي سره مینه زیاتیدله او هره یوه به د بل په لیدلو خوشحالیدله ✤ یوه ورځ ور ته مږدي وویل چه اي چینجخي زه له بهرَ ناله راشم او ته په اوبو کښ یي نو حیرانه شم او چه ناري در ته دیري ووهم نو ته د اوبو په منځ کښ یي هڅه خما آوازونه نه آوري او په شوار وز کښ په یو وار دیدن یاندِ خما تسلي نه کیږي ✤ چینجخي

ور ته وُويل چه ډير ښه وايي مګر چه نګوټي پس پس ديدن کيږي نو مينه زياتيږي ٭ مړي وُويل چه دا رښتيا دي سګر زياتيدل هلته بکار وي چه مينه کمه وي او چه مينه زياته وي نو بيا زياتول يُ څه رنګ کيږي ٭ سا سره داسی مصلحت وکړه چه زه ساعت په ساعت ستا ديدن کوم ځکه چه ناري در ته وهم خو ته يُ آوريدلي نه شي اوکه ښچيله درځم نو هغه خود ښکاره خبره ده چه زه در تللي نه شم ٭ نو يا داسي وکړه چه يو ريبار وي چه سوال ځواب رسوي او يا يله يوه نښه په مينځ کښي مقرره شي چه په هغي سره پوهيږو او دواړه يو ځاي کيږو ٭ چيندخي وُويل چه باري داسي کار به وکړو چه يو تار پيدا کړو او يو سر يُ ستا په پښه پوري وتړو او بل سر يُ خما په پښه پوري نو چه ستا حاجت شي نو ته به د تار سر را کاږي نو زه به خبر شم او که خما حاجت شي نو به يُ زه را کاږم نو ته به خبر شي نو خود به دي کار به سره دواړه يو ځاي کيږو او مجلس مشغولا به سره کوُو ٭ ناګهانه بلي چيندخي ور ته وُويل چه کړيږ دغه کار چه تاسو خوښ کړي دي دغه دوارو له بد دي ځکه چه يو به هم لري په خپل کار پسي تللي نه شي او بله به هم په خپله رضا کرزيدلي نه شي ٭ دوي دواړه ور ته وُو چه ستا به خونړ په دوستئ

او په آشنائي بانډِ زړه بد وي ښکه داسي وايي ÷ هغي ويل چه ډيره ښه ده خپله
رضا کوئ ÷ بلي چينډخي ور ته وويل چه د دي دا خبره هم ښه وه ولي زه وايم
که چري دا تار د چا په پښه کښ ونښلي او راکښلي شي نو ستاسو به د
هري يوي گمان وي چه دا م هغه آشنا راغلي ده او هغه به بل ښوک وي چه
سره جمع شئ نو دوابه په خرابي شئ ÷ دوي دغي ته هم وويل چه چپ شه مه
نکيا اوسه ÷ بلي ور ته وويل چه ښوک د چا مصلحت نه آوري نو بيا ارمان
وکړي خو فائده يئ نه وي ÷ تاسو فکر نه کوئ اي سړي که نه بهر له دښمن
نه تښتي نو ښښي به دِ بندي وي تللي به نه شي او که چري دښمن لاندِ کړلي
نو دا چينډخه به هم دد سره راکښلي شي ÷ او د چينډخي به هم داسي حال وي
نو د يوي په سبب به بله هم مړه شي ÷ دوي ويل چه خير دي که يو ځاي
مړک وي خو لا په ښه شي ÷ ناگهانه يوه ورځ ټپوڅ راغي په سره يئ غوټه
وکړله ÷ مړه تښتيدله سکروښي يئ ونښتلي چه ټپوڅ له په پنځو کښ ورغلله جوړه
پورته يئ کړله ÷ ناگهانه په تار پوري چينډخه هم را پورته شوله چه ټپوڅ په يو
کلي ورغي د هغه کلي خلقو شور کړ ويل يئ چه دا ټپوڅ څه هنر جوړ کړي
دي چه چينډخه يئ له اوبو راوکښلي ده چينډخي ووِ چه ټپوڅ هيڅ نه دي کړي

مکر چه ځوک نصیحت نه آوري نو دا به يې حال وِي ‏٭

# حکايت اته ديرشم

ليکلي شوي دِي چه يو بادشاه نيت وکړ چه د خان دپاره يوه عجيبه بنګله جوړه کانړي ٭ نو اول خو يې کج کر را جمع کړل او ور ته يې وويل چه ځما دپاره يوه بنګله پکار ده ناسو لاړ شئ او په فلاني ځاي کښ لبنه وکړئ ولي په داسي ترتيب سره چه هيڅ نقصان په کښ نه وِي ٭ بيا يې ترکانړان را وبلل حکم يې ور ته وکړ چه غره ته لاړ شئ ځما د بنګلي دپاره لرګي طيار کړئ ٭ هغوي غره ته روان شول چه ور ورسيدل نو په کار يې شروع وکړه چا به په تبرونو لرګي وهل چا به په آرو بانړ تختي ويستلي چا ځنه به ځوړلي ترڅنځ په لاس کښ وو لرګي به يې سوري کاوه چا به په رندي بانړ شانيرونه او سرباريړ لهړي هوارول هغوي خو په خپل کار بانړ لګيا وُو ٭ او هلته بادشاه حکم وکړ بيلداران او لوز دخښو مزدوران يې را وغوښتل ٭ هغوي لاس پوري کړ چا به په يومونو او په سبسورو خاوره کنودله چا به اوبه راوړلي ځنه به يې جوړوله چا به په چاريړ بانړ ځنه آړوله چا به ځښتي سازولي چا به کانړي او ځشاکونه د چوني د جوړولو دپاره راوړل ٭ حاصل دا دي چه مناسب د ودانۍ اسباب يې ټول طيار کړ ٭ چه

په ودانۍ ئې لاس پورې کاره د هغه بنګلي په حد کښ د يتيمانو کور راغي *
سرې ورغلل د هغو مور ته ئې وِوِ چه دا کور په بادشاه خرڅ کړه * هغې ويل چه
خما څه قدرت دي چه د وړوکو يتيمانو مال خرڅ کړم * سړو ډير څه وکړل خو
دې هغه کور خرڅ نه کړ بيا دا ښځه په څه کار پسې تلې وه چه بېرته راغله
بادشاه ئې کور ودان کړې وه کښتونه پوزي برسېنې يالښتونه لوښي لرګي هر څه اسباب
ئې وله غورزولي وه * چه دې وکتل و ئې ويل چه اې پاک خدايه که زه کور نه
وم نو ته خو حاضر وې په خپل کامل قدرت سره * ناګهانه هغه بادشاه
او هغه اسباب او هغه نور ظالمان په يو ساعت کښ زمکې ونغړدل * لکه
په دې باب کښ عبد الحميد ويلي دي *

د ظالم د ودانۍ مخ په ورانۍ دي دا خبر دي په جهان کښ مسلّم

# حکايت نه ډيرشم

هسې يو نقل آوريدلي کيږي چه يو طبيب له يو رنځور ورغي او ور ته ئې
وويل چه صاحب نه رنځور يم که دارو لا له را کړې نو ډير به ښه وې او ثواب
به دِ وشي * طبيب ئې لاس ونيو چه نبض ئې وکوت نو له رګ نه ور نه معلومه
شوه چه ډير ناجوړ دي بيا ئې ور ته وويل چه ژبه وباسه چه ژبه ئې وويستله

نو هم ور ته معلومه شوه چه رنځورتیا ئې سخته دَه + بیا ئې ور ته وېل چه د
خولې خوند دِ ښکه دي + هغَه رنځور وُوېل چه صاحبَ کله خوږ وِي کله ترېخ
وِي کله پيکه وِي داسې په يو حال نه وِي چه زه وُوايم + بيا طبيب ور ته وُوېل
چه کيږه د ښکه دَه + رنځور وُوِ چه صاحبَ کيږه م پرسيدلې وِي غله م نه
هضميږي زړه م سوزي تروي تروي اوبه م له خولې نه راځي + بيا طبيب ور ته
وېل چه دست دِ څه رنګ دي + هغَه وېل چه صاحبَ کله نرم وِي کله کلک
وِي کله قبض وِي کله آزاد وي + بيا ئې ور ته وُوېل چه څه څيز ته دِ زړه
کيږي + رنځور وېل چه صاحبَ له هر څه نه م زړه موړ دي هيڅ م خوا ته نه
کيږي + طبيب پوه شه چه دا ناجوړتيا سخته دَه داسې دوَا جوړيدو نه دي +
بارې داسې کار پکار دي چه ور ته دا خبره نه کوم چه ته نه رغيږي ليکن چه
پرهيز خو ئې مات شي نو به هم بنه وِي چه ارمان خو ئې په زړه پاتې نه شي +
نو ور ته ئې وُوېل چه ځوانَ ستا دارُو دا دِي چه هر څه خوره او هر خواته
گرزه او زړه خپل مه خپه کوه + رنځور چه دا واوريدل ډير خوشحال شه او دعا ئې
ور ته وکړله او وېل ئې چه خُم د ولې د غاړې سيل ته م زړه کيږي چه ننداره
وکړم + چه ولې ته ور ورسيده څه کوري چه يو شيخ سړي ناست دي اودس کوي +

ده چه ور ته وکتل نو په زړه کښ ئې وويل چه ډير د مزي ثخت ئې دي که
يوه مضبوطه څپيړه وله په دا ثخت کښ، کړم نو ډير خوند به وکړي ٭ بيا
ئې فکر وکړ او وئې چه طبيب خو تما ته ويلي وُو چه هر څه کوه جوړ ور
روان شوي دي او يوه مضبوطه څپيړه ئې هغه شيخ له په ثخت ور کړله ٭
شيخ وکتل ويل ئې مه وهه کمبخته ولي وهي نو بو ښل خو ئې فکر وکړ او ويل
ئې چه ئې له دي ډيري را نسم او په دا مخ مخ ئې وهم چه بيا داسي نه کوي ٭
بيا ئې فکر وکړ ويل ئې چه رنځور دي هسي نه وي چه له وهلو نه مړ شي دا به
لا بل غم جوړ شي ٭ خو جوړ له لاس ئې ونيو او قاضي له ئې بوت بيا قاضي ته
ئې وويل چه قاضي صاحب دي سړي زه بي هيڅ په ثخت باندِ په څپيړه وهلي
يم نو اوس ته وله سزا ور کړه که په خره ئې سوروي او مخ ئې توروي او بازار
کښ ئې گرزوي او که بل څه عمل ور سره کوي ٭ قاضي ور ته وُوِ چه شيخ صاحب
ته خپکان مه کوه خلق مَثَل کوي چه ته چت جوړ کړه نو له ما ته پړِ نفسْ
واخله ته وگوره دا عاجز کوم طاقت لري چه ته له ده نه بدل غواړي بلکه که له
لاس دِ کيږي خو څه خيرات هم ورکړه ځکه چه څوک چا سره بد وکړي او هغه
ور سره ښه وکړي نو سړيتوب او بزرگي دغه ته ويلي شي ٭ شيخ ويل چه ما

څخه خو فقط شپږ روپۍ دي نور هیڅ نه لرم ٭ قاضي ویل چه مناسب دي
چه دري روپۍ ده له ور کړي او دري خان ته پرېږدي ٭ دوي دواړه لا په
دي خبرو کښ وُو چه رنځور د قاضي صاحب څنګ ته کښېنستلي دي ور ته عجیبه
ښکاره شوي دي چوړ ورو ورو ور نژدي شه قاضي صاحب ویل چه کنډ ما
ته څه خبره کوي چوړ یو مضبوط پړق یۍ قاضي صاحب له هم ردکړ او و
یۍ ویل چه دا روپۍ چوري شپږ واړه ما له راکړئ او ما رخصت کړئ زه چوړ
نه یم دومره وډدېدلي نه شم ٭ قاضي له تهر ورغي دغه ځاي پر د شیخ وار
چوړ شه او ور ته یۍ وُویل چه عجب انصاف دي چه په ما باندِ حکم کوي
او چه په تا خبره راغله نو وچولي دِ څه رنګ غوټه کړ او خومره خپه شولي
اوس ور کړه ته هم دري روپۍ چه زړه یۍ ښه شي خلق د ظالمانو لاسونه پرېکړي او نه
وله انعاسونه مقرروي ٭ قاضي وُویل چه شیخ رښتیا خبره دا دَه چه په زړه پر
ډیر خوشحال شوم چه ده وُوهلم ٭ شیخ ویل چه سترګي خو دِ یل شان حال دیي
او له زړه نه دِ خبر نه یم ٭ قاضي ویل چه سترګي وریځ وګڼه او زړه باغ دي
او چه وریځ وژاړي نو باغ هاله تازه شي ٭ شیخ ویل چه قاضي صاحب خداي
قادر دي چه اور ګلزار کولي شي نو بي ژړا هم سرې خوشحالولي شي نو دا څه

عذر دِ وکړ چه يې له ژړا نه زړه نه خوشحالېږي .:. قاضي ور ته ويل چه شيخَ
ته نه پوهېږې، چه ناکارَ نه وِي نو ښته به هلهٔ ځوک و نه پيژني که کانړي نه
وِي نو مرغلرو له به ځوک لاس هم ور نه وړي او که بړواتوب نه وي نو د
تورزن به ځوک نوم ياد نه کړي او که جهل نه وِي نو علم او حکمت به عبث
ﮊی نو اوس که زه او ته دي رنځور ته بخښنه و نه کړو نو څه وبړ او د
عامو خلقو سره کوم فرق دي .:. پس له هغَه شيخ هم راضي شه دري روپۍ
يې رنځور له ورکړلي او قاضي هم او دعا يې ور ته وکړله دواړه ويل چه ور ځه
خداي دِ مل شهٔ او په صورت دِ رب روغ کړه رنځور په طبيعت صافۍ
سره روان شه .:.

## حکايت څلويښتم

د محمودِ غزنوِي بادشاه دستور داسي وه چه په شپه کښ به دپاره د غور
د عاجزانو په غريبانه جامه کښ ګرزيده .:. يوه شپه چه په دستور خپل سره
روان شه ناګهانه د غلو په ټولي باندِ پيښ شه .:. هغوي پرِ آواز وکړِ ويل
يې چه ځوک يي .:. ده ور ته ويل چه ستاسو ملګري يم .:. هغوي ديل چه ډيره
ښهٔ دَه راځه کښېنه چه ور سره کښېناست نو هغو وويل چه هر ځوک خپل

خپل کمال بیان کړي چه د ټولو حال معلوم شي نو به هاله په غلا پسي روانیږو * نو بو تن ویل چه زه خو د سپي په ژبا پوهیږم چه هر څه وائي هغه را ته معلومیږي * بل ووېل چه زما دا کمال دي چه که د شپې را ته ډیر لري سړي ښکاره شي نو بیا د ورځي چه ئې ووینم نو را نه نه خطا کیږي * بل ووېل چه زه خو زور او قوت ډیر لرم او چه کندهر ته کښېنم نو په یو ساعت کښې سوري کوم * بل ووېل چه زما خو کمال په پوزه کښې دي نو چه هر چرته چا زر ښخ کړي وي نو زه ئې په بوي پوهیږم * بل ووېل چه زه خو په کمند غورزولو کښې استاد یم په هسي شان سره چه که ډیر مهین او هوار دیوال وي خو چه زه ور ته کمند ور وغورزوم نو په کښې ونښلي * چه غلو ټولو خپل خپل کمال بیان کړ نو بیا بادشاه ته ئې مخ را واړاوه او ور ته ئې ووېل چه ووایه ځوانه په تا کښې هم څه فایده شته دي او که تش پندهونه به چلوي * بادشاه ووېل چه په ما کښې فایدي ډیري ډي مګر یوه فایده خو دا ده چه که په یو ځاي کښې ډیر بندیان وي او د قتل حکم پر شوي وي او جلاد ور ته توره وکښلي په لاس ولاړ وي او په هغه ځاي کښې زما د بیري ولیښته وخوځیږي نو هغه ټول به خلاص شي ان شاء الله تعالی * هغوي

وُويل چه خداي دِ ونجښه دا خو هم‌و ښمرنږ مطلب وشه ته ښمرنږ د ټولو
سردار يي واک اختيار ښمونږ ستا دي ۰ هر کله چه دا حالونه يې سره وويل
نو بيا په غلا پسې روان شول چه قلا ته نږدې شول نو د سپي غپا شوله ۰
هغَه غل چه د سپو په غپا پوهيده هغه وُويل چه د دې سپي له اوازَ دا
معلوميږي چه بادشاه ښمرنږ سره دي ۰ هغَه نورو ور ته وويل چه کم‌عقل
ته نه پوهيږي څه ښمونږ دپاره خو ـم دا ځوان بادشاه دي که نه ځکه چه
بادشاه خو هغه ته ويلي شي چه قيديان خلاصولي شي او هغَه کار د ده
له لاسَ هم کيږي نو بل بادشاه مونږ څه کوُو ۰ بيا هغَه د بوي خاوند چه
بوي وواهه نو وي ويل چه دا ځاي خزانه معلوميږي ځکه چه ما له د زرو
او د اسباب بوي راځي ۰ نو هغَه د کمند خاوند قلا ته کمند واچاوه او
ټول پرِ باندِ واوړيدل ۰ بيا هغَه قوت‌ناک د خزانې په کوټه کښي سوري
وکړ او ټول ور ننوتل او چه څومره اسباب يې وړلي شه هميره پنډونه يې
طيار کړل او بيا په قلا واوړيدل او بهر له ښهرَ يې هغه مال ښخ کړ او ښيټه
يې کيښوده چه په فلانۍ شپه به دا مال وباسُو او په مناسب سره به يې
ويشُو ۰ پس له هغَه خپلو خپلو کورونو ته لاړل او بادشاه د بېل بېل ځاي

معلوم کړ او نوم ئې د هر يو زده کړ نو په يو چل سره تر وغږيده ❊ جوړ
په هغه ساعت کوتوال ئې را وغوښت او په هغو پسې ئې واستاوه او دسنې
ئې حاضر کړل ❊ چه صبا شه او بادشاه په تخت کښيناست او غله ئې ور ته
په مخ کښ ودرول نو هغه سړي چه د شپې ليدلي شوي خپل په ئې نه خطا
کاوه بادشاه ئې وپيژاند چه دا خو هغه څمونږ ملګري دي جوړ خپل ملګري ئې
په دي حال تول خبر کړل ❊ هغوي په يو وار عرض وکړ چه سلطان مهربان
بلا دِ ورکه اوسه ورښيئ څمونږ يوه خبره واوره که مهرباني وي اِتي هر څه
چه کيږي هغه به خود وشي ❊ بادشاه وويل چه ووايئ خپل زړو نه تش کړيئ
چه ارمان مو پاتي نه شي ❊ هغوي وويل چه څمونږ په ملګرو کښ چه څه معنې
وه او څه کمال وه هغه ښکاره شوي دي نو هغه تول په بنه را نه غله مګر
په يو تن کښ د سړي د پيژاندلو کمال وه او په بل کښ د آزادولو فايده وه نو هغه
د پيژاندلو فايده خو ظاهره شوه ليکن د خلاصولو په فايده نه پوهيږو چه هغه
به کله معلوميږي ❊ بادشاه چه دا خبره واوريدله له حيا ئې هيڅ و نه ويل خو
حکم ئې وکړ چه هغه خزانه راوړيئ او دوي له ئې همبره مال ورکړ چه
دو باره ئې د غلا له کار بي غم کړل ❊

# حکایت يو خلويښتم

په بخارا کښ يو بادشاه وه چه بې شانَ سخي ياديده او بيله بيله ورخ ئې د پاره د قسم قسم خلقو مقرره کړي وَه ٭ د رنځورانو دپاره يوه ورخ وَه د کندو دپاره بله ورخ وَه د سيدانو دپاره بله ورخ وَه د عالمانو ملايانو دپاره بله ورخ وَه د يتيمانو دپاره بله ورخ وَه د خوارو مُسافرو دپاره بله ورخ وَه ٭ او هر يو ته به ئې په خپله خپله ورخ دومره څه ورکړل چه د هغي خپلي نيمتي پوري به پرِ د هغه گذاره کيدله ٭ ولې شرط په کښ دا وه چه بيره هيڅوک دِ په خوله څه نه وائي او که څوک چا به په بې فکرئ يا په خطا يا په ناپوهئ سره سوال وکړ نو په هغه ورخ به هغه سړي هيڅ و نه مونډل ٭ مگر په ټول عمر کښ يو سړي ور نه سوال کړي وه او مال ئې ور نه ډير وړي وه ٭ او هغه داسې قصه وَه چه يو سړي راغي او خبر وه چه بادشاه په وبلو باندِ ورکول نه کوي ليکن و ئې ويل چه بادشاهَ مهربانَ زه ډير محتاج يم که څه مهرباني وِي چه ځما په حق کښ وکړي ښي ٭ بادشاه ور ته وُويل چه گمان مِ کيږي چه ستا په شان بې صبرَ او بې شرمَ به بل څوک نه وِي ٭ هغه سړي وُويل چه بادشاهَ يقين م دِي چه په دي زمانه کښ به ستا په شان بل بې شرمَ او بې صبرَ څوک نه وِي ځکه

چه دا دنیا دِ هم وکتله او هغَه جهان ته دِ هم لاس آچولي دي ٭ نو بادشاه
وخندل او چه خه ته د هغه حاجت وه هغَه يُ وله ورکړل ٭ او بي له دغه
سړي نه بل سړي د ویلو په سبب سره ورته خان مړکړ نو هاله يُ خه
وله ورکړل او که نه وِي نو بل چا له يُ نه وُو چه ورکړي ٭ او د هغَه
سړي داسي کار پیښ شوي وه چه هغَه راغي سوال يُ وکړ ٭ بادشاه ورته
وېل چه نه درکوم که هغَه ډېره زارِي وکړله لیکن وله يُ هیڅ ورنه کړل ٭ بله
ورځ د عالمانو سره کښېناست نو ټولو له يُ هغَه مقرره وظیفه ورکړله او
ده له يُ خه ورنه کړل ٭ بیا يُ له پښو نه زړي زړي ټوکري شلیدلي کپړي
چلپیره کړلی او خان يُ د رنځورانو سره ملګري کړ هم هیڅ يُ و نه موندل ٭
بیا يُ سترګي وتړلي او د ړندو سره يُ خان مل کړ په هغَه ورځ هم هیڅ و نه
شول ٭ بیا يُ په مخ زړوکي واچاوه او د زړو بوډیانو او د کنډو په ډله کښ
ورننوت هم هیڅ و نه شول ٭ آخر چه ستړي شه او په هیڅ شان سره کار نه
برابرېده نو لاړ شه او د بو سړي سره يُ مصلحت وکړ او ورته يُ وُویل چه زه
به ساه بنديِ وکړم نو ته م په کټ کښ واچو او په هغَه لار باندِ چه بادشاه
تېرېږي هلته خما کټ کېږده او چه راشي نو ورته وُوایه چه دا سړي مړ دي او

کفن يُ نښته ٭ او هر څه چه حاصل ښي نو بيا به يُ سره نيم کړُو ٭ هغَه
سړِي هم هغَه شان کار وکړ چه بادشاه پرِ راغي نو پوښتنه يُ وکړله چه دا مړي
ولي دلته پروت دي ٭ هغه ور ته ووَيل چه قربان دِ شم بادشاهَ بلا دِ واخلم
د ده کفن نښته ٭ بادشاه ډير مال وله ور کړ ويل يُ چه واخله هم وله کفن
وکړه او هم نور کار و بار پرِ د اسقاط د نمانځه د جمعو د خلويښتيُ برابر
کړه ٭ جوړ هغه سړِي سر پورته کړ و يُ ويل چه تا هم وعده کړي وَه چه
څه نه ورکوم ولي ما هم وعده کړي وَه چه زه يُ نه پريږدم ٭ بادشاه وخندل
او و يُ ويل چه هاله دِ څه وموندل څه خان دِ مړ کړ ٭

## حکايت دوه څلويښتم

اوښ او غوايه او گډوري سره دريواړه ملگرِي شوِي وُو ٭ په يوه لار تلل
ناگهانه يوه گيډيُ د واښو يُ وموندله نو گډورِي وُويل چه داسي مصلحت
پکار دي چه دا واښه لږ دِي او موږ دري تنَ يُو نو که دا گيډيُ وُ ويشُو نو
خو د يو تن کار پرِ نه کيږي او تش د خولي خوند او د گيډي سوي به وِي او
که يو تن له يُ ور کړُو نو خواه مخواه څه شخوند به پر وُوڅي او گيډي له به
يُ تاو ور ښي ٭ او که دا مصلحت ستاسو خوښيږي نو هر څوک چه په عمر

کښې مشر وِي هم هغه دِ يُ وخورِي ځکه چه مشرانو له عزت ورکول مناسب
دِي * نو بيا کډورِي وُوېل چه مشر به هاله معلوم شي چه چا ته سن ياد وِي
او زه په خپل تاريخ پوهيږم چه د حضرتِ ابراهيم د کډورِي سره م نسبت لګيږي
نو داګيډيځ ښما رسيږي * غوايه وُوېل چه خير ته خو اوسني يي او زه د
هغو غوايانو عزيز يم چه حضرت آدم وربښي په جغ تړلي وُو نو معلوميږي
چه مشرِي به ښما وِي نو داګيډيځ دِ ماله راکړلي شي * اوښ غړانګه ښکته
کړله او ګيډيځ بُي په خوله کښې ونيوله اووېل بُي چه ښما خو تاريخ او عمر يادولو
ته حاجت نشته دي هر چا ته معلومه دَه چه زه لوي يم نو عمر به م خود
ډير وِي اوس که بل څوک ښما هومره وَي نو مناسب وُو چه ښما سره يُ سيالي
کولي او کالونه يُ شمارلي * دا خبري يُ دوي ته کولي او ګيډيځ بُي وخوړله *

چه د چا وِي د لاسونو زور قوت — هغه کله د حساب لرِي حاجت

# حکايت دري خلويښتم

يوه زرکه د غره په لمن کښې په ښه شان سره ګرزيدله او په قهقهه سره
به خنديدله * يو باز په هوا ته چه د دي په تول يُ نظر شه او آواز د
خندا يُ په غوږ ولګيده بي اختيارَ پرِ مين شه * نو په نږه کښې يُ داسي

فکر وکړه چه په دې دنیا کښې د هر چا ملګرې ته حاجت شته دې او خلق وایي چه هر څوک چه بې یارَ وِي هغه تل بیمار وِي ٭ نو دا زرکه هم ښائیسته دَه او هم خوش‌آوازه دَه چه زړه د سړِي ور سره خوشحالیږِي ٭ پس له هغه مصلحت ورو ورو زرکي له ور روان شه ٭ چه د زرکي نظر په باز ولګیده جوړ له ویرې په تلوار سره وزغلیده او د عزه په یو غار کښې ننوته ٭ باز له هوا نه راکوز شه او د هغه غار په خوله پورې کښیناست او ور ته یې وُویل چه اې زرکي زه ستا له دې هنرَ غافِل وم او دا همره کمال ستا ما ته معلوم نه وه ٭ نن ورځ ستا قدر را ته ښکاره شه نو اوس وایم چه پس له دې له ما نه مه ویریږه او خما په ملګرتیا کښې خوشحاله ګرزه ٭ زرکي ور ته وُوِ چه اې زورآورَ لاس له ما نه ولسه او چرته بله زرکه وګوره چه په غوښه یې ښان موړ کړې ٭ او په هغه وقت چه اور او اوبه یا سوډې او نمر سره یو ځاې شي نو خما او ستا ملګرتیا به وشي ٭ باز وُوِ چه اې زرکي ته فکر وکړه چه زه ولې ستا سره داسې په مینه او په مدار خبرې کوم ٭ منګلې مِ ماتې نه دِي چه ښکار پرِ نه شم کولي او مښوکه مِ هم سسته شوې نه دَه چه ګنډِ له خوراکَ پریوتلي یم ٭ نور هیڅ سبب نشته مګر محبت ستا را باندِ باعث دي ٭

او څما په دوستيۍ کښ ستا ډيري فايدي دي يوه دا دَه چه د نورو بازونو له لاس
په خلاصه يي بله دا دَه چه څيلي چالي له به دِ بوزم چه له تولو زرکو نه پاس
گذران کوي بله دا دَه چه هره زرکه چه ستا خوښه وِي هغه به دله زالم چه در
سره مشغولا کوي ۞ زرکي وُوِ چه ته د مرغانو بادشاه يي او مونږ غريبانان خلق يُو
نو که چري ستا په آشنايۍ کښ زره وره شم او خبره م له خولي بي باکه وزي نو
بيا به ته په غضب شې او ماله به نقصان شي ۞ باز ور ته ويل چه تا نه دِي
آوريدلي چه د دوست سترگي د دوست په عيب نه لگيږي ۞ او زه چه ستا د
محبت دعوي کوم نو بيا څنگه به ستا بدو ته يد وايم ۞ حاصل دا دي چه ډير
سوال او ځواب د دوي په مينځ کښ سره وشول ليکن د زرکي څه عذر پائي
نه شه له غاره راووتله او باز د ځان سره واخستله او څپلي چالي ته يي وخيژوله
بيا هلته په خندا او په هوس يي سره گذران کاوه ۞ چه دوه دري ورځي تيري
شولي او زرکه د باز سره خلطه شوله نو بيا به يي خبري زړه وري له خولي وکښلي
بلکه په خبرو کښ به يي په باز پوري خندا کوله ۞ او باز چه به دغه کار ليده
نو ظاهر خو به يي هيڅ نه ويل مگر په زړه کښ به يي لږه لږه کينه پيدا
كيدله ۞ يو رځ باز وږي شه او بهر چرته په سيل پسي لاړ نه شه بتوله

ورخ ئې په جاله کښ نبره کړله ، چه شپه شوله او ججوره ئې له غوښي خالي شوله نو اور د لوږې ئې لبنه شه او ډير قهر ور سره جنبه شه او هغه لړه لړه کېښه چه په ډير عمر کښ جمع شوي دَه هغي په وار ښان بنکاره کړ ، زرکي ته چه لبنه د غضب په مخ کښ د باز بنکاره شوه او د خپل ځان مرګ ور ته معلوم شه نو سوړ اسويلي ئې وکړ او و ئې ويل چه ارمان دي چه ول مِ فکر و نه کړ او اوس مِ خلاصيدل ګران شول ، او باز چلونه او بهاني جوړولي ويل ئې چه څه چل مِ وکړلي چه دا زرکه ماته کرمِ ، عاقبت ئې زرکي ته وُوِ چه اي زرکي دا ډير بنه کار دي چه په ما باندِ غاړه دِي او ته په سوړي ناسته يي ، زرکي وُوِ چه اي مهربانَ اوس خو شپه دَه نو نه ښکه په عرمو شولي او زه په سوړي کښيناستم ، باز ور ته وُوِ چه هان ما نه دِ دروغژن دوايه او خبره دِ را ته بيرته را وګرزوله ور وکړه اوس به دِ علاج وکړمِ ، جوړ پنجه ئې ور واچوله او را و ئې بنوله هم په هغَه ځاي ئې را وپرزوله او ماته ئې کړله او و ئې خوړله ، لکه عبد الرحمٰن ويلي دِي ،

چه په زور ور سره نه يي برابر      د هغو له ښکَ مه کښېينه زړه ور

# حکایت څلور شلویښتم

یو تګ سړي له خراسانَ دپاره فریب ورکولو او د تګيُ هندوستان ته روان
شه + او دوه تن تګان له هندوستانَ خراسان ته را روان شوي وُو + ناګهانه
په اټک کښې سره د بټیارِي په کورکښې یو ځاي پیښ شول + نو د خراسان
هغه تګ ور ته وُوِ چه تاسو چرته روان یيُ + هغو ور ته وُوِ چه خراسان
له ځُو چه په جا تګي وکړو او څه ترِ واخلو + خراساني تګ ور ته وُوِ چه ډیر
ښه کويُ + بیا هغو له ده نه پوښتنه وکړه چه ته چرته ځي + ده وویل چه زه
هم هندوستان له د دغه کار دپاره ځم + دوي ور ته وُوِ چه راځه چه سره
دلته حال معلوم کړو بیا هر څوک چه غالب شي نو پنځه پنځه سَو روپيُ به له
هغه نورو اخلي او هغه نور به يُ متابعت کوِي + جوړ سره دري واړه یو ځاي
کښیناستل او مصلحت يُ سره وکړه چه یره دروغ به وایُو لیکن هر چا چه د بل
خبري ته دروغ وویل نو هغه به پرِ ږشي + خراساني ور ته وُوِ چه باري تاسو
ووایي + نو هغه یو هندوستاني وُوِ چه څما پلار ډیر دولتمند وه او بي حسابه
دیا يُ لرله او یو څو لکه میښي يُ وي چه هري میښي به په منګو پيُ کول +
او پلارِم په میره کښې یو تلاؤ چونه کړي وه او هغه پيُ به يُ په کښې

ماسته کول ÷ هر کله چه ماسته به شول نو يو څو زو ميښي به ئې هغه تلاو
ته در واچولې نو هغه ميښي به په کښ ولمبيدلې او يو خوا بل خوا به واوريدلې
را واوريدلي نو هغه ماسته به ئې وشربل ÷ نو بيا به ئې ميښي تر ووبستلي او
جاله به ئې ور کده کړله او چاټۍ به ئې په کښ ايښي وي نو په را ښپيلونو به
ئې له هغه شلوښو نه کوچ را ټولول او په جاټو کښ به ئې آچول ÷ نو چه کوچ
به ئې تر ټول کړه نو بيا بوچه به ئې د تلاؤ ووبستله هغه شلوښي به ئې
ميږي ته خوشي کړلي ټولي به وڅيدلي ÷ بيا چه هغه کوچ به ئې ولي کړل
نو په سوونو منونه غوړي به تر وختل ÷ خراساني وُړ چه بي شک چه دومره
ميښي ږي او داسي پئ کوي او دا رنګ کوچ تر خيژي نو خواه مخواه به تر غوړي
ډير برابريږي ÷ بيا هغه بل هندوستاني وُړ چه څما پلار هم لوي دنيادار وه او
يو څو کروره چرګي ئې ساتلي وي او چه مُده د پسرلي به شوله نو يو څو لکه
چرګان به ئې ور پريښول ÷ چه هغه چرګو به هاګۍ واچولي نو لوي لوي ټوپونه
به د هاګو جوړ شول نو غابنور يه ئې پر ور کړ او هغه ها به ئې بنګته
پورته کولي چه شل بويښت ورځي به تيري شولي نو بچي به پيدا شول او يو
بيابان ته به ئې ور ووبستل ÷ چه به څه مُده تيره شوله نو بيا به ئې خرخول

نو ډېري روپۍ به ور ته جمع شولي ٭ خراساني وُويل چه رښتيا دَه چه چرګي
په کروړونو وِي نو هاګۍ په لکونو وِي او چه ها په تونونو وِي نو آخول به يې
خود په ځناورو کيږي او چه دومره بچي پيدا شي نو خواه مخواه په ډېر ځه به
خرڅيږي نو په دي دواړو خبرو کښ هيڅ تعجب نشته ٭ حاصل دا دي چه
خراساني د دواړو خبرو نه رښتيا دُو بلکه دواړو له يې دليل پيدا کړ چه تاسو
رښتيا وايئ ٭ بيا خراساني وُو چه ځما پلار بې شانَ ښه سړي وه او مونږ
ډېر ورونړه وُو مګر يو تن راکښ ګنجي وه نو يوه ورځ د هغه ګنجي سـر
وينځي شوي وه نو مونږ پرِ خاوره وډوړوله ٭ په هغه خاوره کښ د غوښت
دانه وه جوړ هغه په کښ زرغونه شوه هغه ډکي ورو ورو لوئيده نو مونږ
به يې بيخ نه خاوره آچوله ٭ هر کله چه وکي يې وکړل نو داني به نرِ ريژيدلي او
نور ډکي به زرغويدل ورو ورو لوي پېښي ترِ جوړ شه ٭ چه څو مُده پرِ
تېره شوله نو سوکړه شوه بارانونه نه کيدل نو په هر ملک کښ چه به باران
وه نو دغه ډرور په وله مونږ بيوه ٭ بيا چه غوښت پاينه شول نو مزدوران
مو ونيول او د هغه ډرور سر نه مو ور وخيژول نو يو څو مياشتي لوئي
په کښ وکړ ٭ بيا غواړان مو ور وخيژول او غوبلونه مو په کښ وکړل او

پاکیزه مو کړل نو بې حده ډیر غوښت وشول ٭ پس له هغه خلق به را تلل او
غوښت به ئې قرض وړل نو ستاسو د دواړو پلرونه راغلي وُو او ځمونږ نه
ئې د پنځه پنځه سوو روپو غوښت وړې وُو نو اوس زه در تلم ما وې چه
هغه خپلې روپۍ راوړم ٭ هندوستانیان حیران شول که ور ته دروغ وایي نو
هم په پنځه پنځه سوو روپو پوره کیږي او که رښتیا وایي نو هم تر ډوره مال
ځي آخر خراساني له ئې زر روپۍ ورکړلې ځانونه ئې تر خلاص کړ هغوې په
بیرته لاړل او دې کور ته راغې ٭

# حکایت پنځه شلویشتم

زمري او شرمښ او لونبړ یوه ورځ جمع شول نو په ښکار روان شول ٭ ناګهانه
یو ګاوز او یوه هوسۍ او یوه سویه په لاس ورغلل نو درې واړه ئې د زمري ډیرې
ته را ورسول ٭ او شرمښ او لونبړ په دې طمع کښې وُو چه زمري به د خپل
خوې سره لایق ویش وکړي او په مناسب سره به مونږ له حصه راکړي
او زمري هم د دوې په نیت وپوهیده نو ځان سره ئې دا وُویل چه ستاسو یو
شان ګمان دې او ځما بل شان نو ګورم به چه څه به کیږي مګر دوې دواړه په
خپل خیال ئې خبر نه کړل ٭ چه په آرام شول نو زمري شرمښ ته مخ کړ او

ورته ئې ووېل چه ته ښائسته يي نو دا دري وارهٔ ښيزې په مناسب سره ووايه ❊ شرمښ ووېل چه صاحب ته هم لوي يي او دا ګاوز هم لوي دي نو جوړ دا سته شه ❊ او زه هم بيانه يم او دا هوسئ هم بيانه ده نو جوړ دا ښه شوه او دا سويه هم وړوکي ده او لونبړ هم وړوکي دي نو دا خود ده ته پاتي شوله ❊ زمري ورته ووېل چه عجيبه ده چه ته ښما د وړاندې هم زه او ښما يادوي او وايي چه زه داسي يم او دا ښه شوه ته ښوړ يي او ښه ښيز يي او ښان درته ښه بنکاريږي او په ما د ښه ګمان کيږي دي خوانه مال را شه ❊ چه شرمښ ورته نزدي شه جوړ زمري پنجه پورته کړله چه وله ئې ګذار ورکړ هم په يوه ښپيړه ئې غريب سر کړ ❊ پس له هغه ئې بيا لونبړ ته مخ کړ او ورته ئې ووېل چه دا ښيز زنه ووايه لونبړ ووېل چه دا ګاوز خو د پادشاه د صبا د خوراک مناسب دي او هوسئ د غرمي دپاره ساتل لايق دي چه پادشاه پر طبيعت صاف کاندې او سويه به خود د ماښام په وقت کښ بکار شي ❊ زمري ورته ووېل چه رښتيا ووايه چه دا ويش او دا ترتيب دې له چا نه زده کړي دي ❊ لونبړ ووېل چه مهربان بلادې داخلم سري هغه دي چه په بل باندې پند واخلي نو چه ما د ده حال وليده نو پوه شوم چه ځيل ښان ته ښان ويل بکار نه دي ❊ زمري

وُویل چه هر کله چه تا داسې کار وکړ نو ما له ښائي زه هم انصاف
وکړم نو منصفي ځما دا ده چه دا ځېږونه ټول ستا شول او زه به د ځان
دپاره نور ښکار برابر کړم او پس له دې هر څه چه وایي هغه به کوم +
لونبړ چه دا واوریدل نو ئي وُویل چه شکر دې چه ئي ما ته حکم درستي وکړ
او که نه وَې نو زه به هم د شرمښ په شان هلاک شوي وم +

## حکایت شپږم څلویښتم

له شیخ سعدِي نه نقل دې چه یو سوداګر م ولید چه اوه‌یمي شلي اوښان
ور سره بار وُو او څلویښت کسَ مریونه ور سره خدمتګار وُو + یوه شپه ئي
په جزیره د کیش کښ زه خپلی حجري ته بوتلم او تمامه شپه له ګډو وډو خبرو
نه په آرام نه شه + ویل به ئي چه فلاني انبار م په ترکستان کښ دې او فلاني
رخت م په هندوستان کښ دې او دا را څخه د فلانيِ زمکي سند دې او د
فلاني مال م فلاني سړي ضامن دې + کله به ئي ویل چه شوق م اسکندریې
ته کیږي ځکه چه هوا ئي ډیره ښه یادیږي + بیا به ئي ویل چه نه هلته نه ځم
په دا سبب چه په دریاب کښ د سړي طبیعت ګډوډ شي + بیا ئي وُویل چه
اي سعدِي یو سفر م په نیت کښ دې که هغه وشه نو امید دې چه باقي

عمر به په کوټنړيءِ کښې کښېنم او هيڅ کار به نه کوم ٭ ما ورته وويل چه
هغه کوم سفر دي هغه خو هم ووايه چه واورم ٭ ويل ئي چه د پارس ګوګړ به
راوړم چه چين ته يې سم ځکه چه هلته کښې ګران خرڅيږي ٭ او له چين نه
به چيني لوښي روم ته وړم چه هلته هم ډېره ګټه په کښې کيږي ٭ او له روم
نه به وريښمين ټوکي هندوستان ته وړم چه په هغه ځاي کښې هم نفع
پاديږي ٭ او له هندوستان نه به پولاد حلب ته وړم چه هلته پوره نفع په
کښې حاصليږي ٭ او له حلب نه به ښيښې يمن ته يا روم ځکه چه هلته په
مناسب سره ارزيږي ٭ او له هغه ځايَ به يمني ځادرونه پارس ته راوړم ٭ پس
له هغه بِه زړه دي چه سوداګري به پريږدم ٭ هر کله چه دې سترِي شه او
زياتي طاقت ئي باتي نه شه نو ما ته ئي وويل چه سعدي ته هم له ځېلو ليدلو
آوريدلو نه څه ووايه که نه ٭ ما ورته ويل چه زه څه ووايم تا دوسره څه
وويل چه ځاي دِ د ويلو پرِي نه ښود نو ٭

تا به نه وِي آوريدلي چه يو وار ٭ وه پريوتي سوداګر له اوښ نه لاندِ
وِ چه موړ به شي ورسترګي دنيادار ٭ يا په صبر يا د ګور په خاورو باندِ

## حکايت اووه څلويښتم

په یو ځنګل کښ یو زمري اوسیده او یوه شادو هم ور سره ملګري وه ⁜ یوه ورځ
زمري د څه کار دپاره چرته ته تو شادو ته یې ویل چه ته دلته ناسته اوسه
او تر هغه پوري چه زه نه یم راغلی تو چرته مه ځه او کور هم څوک مه پریږده
چه زمري بهر وتلی دي ناګهانه یو کیدړه او کیدړه د بچو سره هلته کښ
پیښ شول ⁜ چه هغه ځاي ته یې وکاته او تماشه یې وکړه تو هغه ځاي ور
ته ډیر ښه ښکاره شه چو په هغه ځاي کښ پاتي شول ⁜ شادو راغله ور
ته یې وویل چه هلک ته دلته پاتي شولي او دا ځاي د زمري دي که چري را
ورسیږي تو ستا دپاره به بده شي ⁜ کیدړ ور ته وویل چه څه چپ شه
کم عقلي دا څما د پلار ځاي دي ماته میراث پاتي شوي دي او فرض کړو که دا یې
نه وي تو بیا ستا څه کار دي زر پوهیږي او ژر کړ پوهیږي ⁜ شادو چه دا
واوریده چپ شوله او له ځانه سره یې وویل چه څما پر څه دي چه څه کړي
هغه به موږي ⁜ بیا کیدړ ته جلي ښځي ووېل چه څه چه دا ځاي پریږدو
ځکه چه زمري زورآور دي هسي نه وي چه څه فساد پیښ شي ⁜ کیدړ
ووېل چه اې ښځي ته بې غمه کښېنه که بیا راغي تو هغه ساعت هغه
مصلحت ⁜ دوي به دا خبرو کښ وو چه سرزي راغي جوړ شادو په تلوار سره

مخې له ورغلله او دا حال يې ورته نقل ورکړ چه زمري خبر شه نو فکر يې وکړ بيا يې شادو ته وويل چه معلوميږي چه دا ګيدړ ته دي دا به بلا خه بلا ده او که نه وي نو ګيدړ ځوک او ځما په کور کښې کښېناستلل نشي شو ته قسمونه او سوګندونه وکړل ويل يې چه ما پخپله ور سره خبرې کړې دي نوره داسي ناپوهه شوم چه ګيدړ نه پيژنم څه ☆ زمري ويل چه ستا خبره منظوره ده ليکن دا به عقل کښې نه راځي چه ګيدړ به داسي وکړي ☆ او ګيدړ خپلې ښځې ته وويل چه زمري را نزدې شي نو ته خپل هلکان جنګې وژړوه او بيا داسي ووايه چه دوي د زمري تازه غوښه غواړي او وايي چه موږ بې تازه غوښه نه خورو ☆ هر کله چه زمري را نزدې شه نو هغې ګيدړې خپل بچي وژړول نو ګيدړ ورته وويل چه دا واره ولي ژړدي ☆ هغې وويل چه د زمري غوښه غواړي ☆ ګيدړ ورته ويل چه پرون م لا غټ زمري وژلي وه نو بيا هغه غوښه خلاصه شوله څه ☆ هغې ويل چه دوي تازه غوښه غواړي باسي کله خوري ☆ ګيدړ ويل چه وار وکړې اوس به غټ زمري راشي نو به يې ووژنم نو بيا تازه غوښه خورې ☆ زمري چه دا خبره واوريدله جوړ له هغه ځايه يې ووکړ لاړ وتښتيده او زړه يې داسي ولړيده چه په هيڅ رنګ يې خاطرجمعي

نه کېدله * شادو پسې نوره غلله او ورته ئې وېل چه ته نه پوهېږې او هغه د غلوي
راځه چه ورشو هيڅ وسواس مه کوه * چه زمري بيا در روان شه نو هغې
ښځې بيا بچې وژړول کېدل وېل چه دوي نکوټې چپ کړه هغه شادو چه خما
ډېره دوسته ده هغې وېلي دي چه زه به زمري خواه مخواه ننه راولم * چه زمري
دا آورېدلي دي او جوړ شادو له ئې څپېړه ورکړې ده او له وېرې مخ په وړاند
زغلېدلي دي په هسې شان لاړ شه چه بيا ئې ورستو هډو د نه کتل کېدل
ته بي دبره ځاي پاتې شه *

## حکايت اته څلويښتم

هوښيار سړي يو وار خطا کيږي او له وعدې خپلې نه نه ګرځي او کم عقل سړي
هر وار خطا کيږي او که شل وعدې وکاندِ هم ئې ماتې کړي * لکه په يو ځنګل
کښ يو زمري وه چه ډېر زوړ شه او طاقت ئې کم شه او د ګرزېدو وار ئې تېر شه
نو يوه ورځ ئې يوې خوارې بدشکلې لونبړې ته وُوېل چه اي لونبړې تا خما ډېر
عمر پسخوردي او جوټې خوړلي دي او رنګ احسانونه د خما له لاس
لېدلي دي او اوس وېنې چه زه دي حال ته رسېدلي يم چه په ښکاردو
پسې ګرزېدلي نه شم نو مناسب دي چه ته لاړه شې او چرته غواية يا خر

یا بل څه ښناور په چل ول سره رادلي نو دلته به يي مات کړم بیا د دوارړو
کار به پرِ ړشي ٭ لومبړي ور ته وُويل چه دغه يم لارم هر څه چه م ومونډل
يو وار به بيَ ستا د وړاندِ حاضر کړم دا يي وويل او روانه شوله ٭ ناګهانه په
يو خر بانډِ پېښه شوله چه خرئي وليد نو له ورابه بيَ پرِ سلام وُوايه او
ور ته يي وُويل چه دا څه کوي چه په ناکارَ ځاي کښ ګرزي چه نه اوبه شته
او نه وابنه شته تش کاڼږي او لوړِتي دِي نور هيڅ نه مونډلي کيږي ٭ خر وُويل
چه په قضاءِ رضا دَه هر څه قسمت چه خداي کړي دي په هغَه خوشحالَ
يم څما په حق کښ به داګذران ښه وِي خداي خير دي چه د لغمتونو سره
ځوسرهِ عنونه پيښيږي ٭ لکه ما ته چِل پلار قصه کړي دَه چه د يو بتهيارِي
خر وه چه دير خوار شوي وه ښا يي ځاي په ځاي زخمي شوي وَه او د بادشاه
ميرآخور د هغَه بتيارِي سره آشنا وه يوه ورځ يي ور ته وُويل چه دا خر
دِ ولي داسي خوار دي ٭ هغه وُدِ چه واړه لوږه دَه نور هيڅ نشته ٭ ميرآخور
ور ته وُوِ چه راوله دا خر څمونږ په طبيله کښ پريږده چه ګرزي داسي به
څورب شي چه دِزره غواړي ٭ بتيارِي جوړ په هغَه ساعت خر طبيلي ته روان
کړ او هلته يي پريښوده چه خره د آسونو حال وُليد چه بيل بيل به کراره کيده

او ښخاي به ور ته چڼاویده او اوربوښي او اړداوه او بوس او واښه به ور ته
په بنه شان په وقت رسیدل نو دغه خر ډیر وژړل او فریاد ئي وکړ
او وئي ویل چه اي پاک ربّ زه دِ هم مخلوق یم او دا دِ هم پیدا کړي دي او
د دوي دا حال دي او ځما دا گذران دي * دي په دي دعا او په فریاد کښ وه
چه ناگهانه آواز وشه چه آسونه زین کړئ په فلاني ځاي کښ مفسده ده چه
جنگ له روانیږي * في الحال آسونه طیار شول مقدمي ته لاړل * چه تماښام
شه او آسونه له جنگ دا وګرزیدل ټول ځاي په ځاي زخمیان پرېوتل او
نعلبندان راغلل مصترانو ور ته د آسونو پښي وُ تړلي نعلبندانو په انبورونو
باندِ غوښي د آسونو را بیولي او قطري به يُي تر په چړو او په ټینګو پرېکولي
او ګولئ به ئي له پرهرونو نه وکښلي * خره چه دا حال وُلید و ئي ویل چه
پروردګارَ ځما په دي خپل روغ صورت شکر دي او بغیر له خپل ځان بل نعمت
نه غوارم * نو چه دا خبره ما له خپل پلار نه آوریدلي ده نو له هغي ورځي
راهیسته په هر شان چه ساعت تیریږي صبر پرِ کوم * لونبړي ور ته وُوِ چه
په تا د هغَه سرِي نوقه شوي ده لکه چه یوه ورځ په لار روان وه ناګهانه یوه
شَلّه لونبړه ئي وُلیده له چه پرته وَه او له ځايَ خوځیدلي نه شوه نو دغه سړي

نګر

فکر وکړ چه دا به خوراک له کومَ مومِي جوړ په یو ځای کښې ور ته پټ کښیناست ویل ئي چه نن ورځ ورته دلته کښېنم چه حال ئي زده کړم ÷ چه یو ساعت تېر شه یو زمري راغي ښکار ئي کړي وه چه څه ئي خواړه هغه ئي وُخواړه نوړ ئي دغه لونبړي ته ور تېل واهه ÷ چه سړي دا حال ولید نو وئي ویل چه روزِي په هر ښان سړِي ته رسېږِي نو څه له ځان دړوم جوړ لاړ شه په یو غره کښې په غار کښې کښېناست ÷ چه دوه دري ورځي پرِ نهاري تېري شولي نو وئي ویل چه اوس لا جوړ یم او بیا به زیات بي‌طاقتَ شم نو مناسب دِي چه اوس دَ ځان غور وکړم ÷ چه دي روانیده نو له غیبَ پرِ آواز وشه چه ٽا له خدای لاس او پښې درکړِي دِي نو زمري شَه او وکَړه چه ستا له لاسَ نوړ څوک خوراک ومومِي او لونبړه کېږه مه چه دَ بل پس‌خوردي ته دِ سترګي وِي ÷ خر ویل چه په دي باب کښې ما بل ښان قصه اوریدلي دَه او ٽا بل ښان وُویله او په اصل کښې داسي دَه چه یو سړِي په حدیث کښې ولیدل چه روزِي په هر ځای کښې سړِي ته رسېږِي نو ده وویل چه باري څم چه په دي حدیث خو آزمېښت وُکړم چه دا به څنګه وشِي نو دَ یو غره په طرف په بیابان کښې له لارې لرې او له ودانۍِ نه په ډډه پرېوت ÷ ناګهانه یو کاروان لار

ورکه کړي وَه جوړ دپاسّ پرِ ورو خوت چه کاروانیانو ده ته وکتل نو وئي ویل
چه هيځِ هيځِ دا عاجز غریب مسافر له لارې بې‌لاري شوي دي او په سبب دَ
لوږې مړک نه نزدې شوي دي ژر شيځِ ډوډيځِ یا وریجي راوړيځِ چه ورکړو امید
دي چه اوس به جک جوړ پاڅي ٭ چه خوراک ئي وله راوړ ده ورته خوله کلکه
کړله که هغوي ډیرڅه کول خوده خوله وازه نه کړله ٭ هغوي پوه شول چه
دا خوله دده له ډیري کمزورتیا نه نه بېرته کيږيِ نو بو منتر په کښ وه هغه
ویل چه داسي مصلحت کوُو چه ددي سرِي پو دوه یا درې غاښونه وباسُو څکه
چه سړي مړ شِي نو بده خبره دَه او که غاښونه ئي نه وِي نو هيڅ باک نشته ٭
هغوي ټولو دا خبره خوښه کړله او دستِي ئي دَده غاښونه وویستل او ډوډيځِ
ئي په ښوروا کښ چوډِي کړله او لږه لږه به ئي ورته څڅوله ٭ نو دغه سړِي
خپل ځان سره وُویل چه بې‌شک نصیب هرځاي سرِي ته رسيږي نو لا
څه دپاره پروت یې چه غاښونه دِ هم بايلل او نورخلق دِ هم له کارَ وُویستل
جوړ پاڅید او اوچت کښیناست ٭ لونږي ورته ویل چه احمقَ دا څه قصي
دِ قطار کړې دِي دم دَ چرمبکيِ نه لري اوکوتي ښامارانو ته آچوي بې‌عقلَ دَ
خپل ځادرو سره پښي غزول پکار دِي نه چرته اودَ هغو خلقو شان

زرهٔ چوته ÷ حاصل دا دي چه قسم قسم سوالونه او خوابونه دَ دوي به مینځ کښ وشول به آخر کښ ورته لونبړي وویل چه اي جاهلَ دَ خان دښمن بي هیڅ خان خپل به دي سختيُ کښ وژني او دومره در نه نه کیږې چه ما سره یو خو قدمَ لاړ شې ÷ او حال داسي دي چه به هغه ځاي کښ داسي واښه دِي چه کبل خوئ تر ملا ملا رسیږي او به نورو واښو کښ خوئ اوښان پټیږي او هر طرف به کښ بخي بخي خوږي خوږي رڼي رڼي اوبه بهیږي هرڅناور چه هلته ورورسیږي نو به هسي شان څربیږي چه نور پرِ نه کیږي او بخت به دَ هغه ځناور وِي چه هلته پیښیږي ÷

خو بي‌شکَ چه کم‌عقل وه نادان | بي‌شعورَ لوي احمق وه دَ جهان
او که نه وِي نو خواب به ئي دا رنګ | وه لونبړي له ورکړي هغه درنګ
دا ویل دِ کُل دروغ دا معلومیږي | چه پښتيُ او نور هم وکي دِ ښکاریږي
دغه ستا ناکارَ شکل ګواهي لینه | چه ویل دِ همه واړه دروغ دِینه
یو سرِي اوښ ته ویل چه اي نیکنامَ | له کوم ځايَ راغلي وِچه له حمامَ
هغه وِچه به رښتیا هم دغه شان | دا سپیره زنګون دِ کړي ښکاره بیان
اي **احمد** که ئي زده وي دا خواب | ورته ولي پیښیده به لوي عذاب

خر چه دَ لونبړي خبرې واوریدلې نو اګر که ده څوابونه جوړ جوړ کړې وُو لیکن په سبب دَ بادولو دَ ښه خوراک او دَ ښائسته ځاي طمع ئې پیدا شوله او دَ لونبړي په خبره ئې یقین راغي ☆ ورته ئې وُویل چه یارې څَه چه لار شُو که نه چه هغه ځاي هم وُوینُو چه ته ئې دومره صفت کوې ☆ جوړ په هغه ساعت روان شول لونبړه وړاندِ دَه اوخر وروسته دي ځنګل ته ورسیدل ☆ زمرې چه له ورایه خرولید له سببَ دَ لوږې نږدې ورتللو ته ئې پرې نه ښود او صبر ئې ونه کړ له ورایه ئې حمله ورباندِ وکړله ☆ اوخر چه له لرې زمرې ولید جوړ په بیرته ئې دوکړ په لوړو په ټورو په کندو په کمرو وزغلیده لار ځان ئې خلاص کړ ☆ لونبړې زمرې ته ډیر قهر وکړ او ملامت ئې کړ او ور ته ئې وویل چه ما دومره په ډیر راوست او دا قدر صبر دِ ونه کړ چه لکوټي خو را نږدې شوې وې ☆ زمرې وُویل چه بېشکَ بدمِ وکړل لیکن اوس به څه چل وشِي داخرخو به بیا لاس له را نه شِي ☆ هغې لونبړې ورته وویل چه هم داخر به بیا راولم خو ته تلوار مه کوه چه در ته نږدې شِي نو هاله پرِ حمله وکړه ☆ زمرې وویل چه زه اوس ښه پوه شوم لیکن داګمان مِ نه کیږې چه بیا به دِ سره راشِي ☆ لونبړې ویل چه راوستل ئې ځما په ذمه دِي خو ته فکر

کوه

کوه * پس له هغه بیا ورپسي روانه شوله چه ورو رسیده خو ورته ویل چه
ظالمي کوم بد مِ درسره کړي وُوچه زه دِ دَ بلا دَ وړاندِ بوتلي وم فضل دَ
رب وه چه ولي سائلم اوکه نه وي ماخوچه دغه حال ولیده نولاس مِ له
ژوندانه نه وُوینځل او طمعَ مِ له ځانَ قطعَ شوله * لونبړي وُوِچه له مانه په
اوّل ځل کښ خطا وشوه چه ته مِ خبر نه کړلي او هغه چاځیره جوړه کړي دَه دَ
توقو دپاره چه نا آشنا سړي راشي گمان لي وشي چه کُندِ دا زمري دي او
په کښ هیڅ نشته خوځما له فکرَ وُوتله او داخبره مِ تا ته ورنبئِ ونه ویله*
خر ورته ویل چه چپ شه مکاري دښمني بدکرداري په ما باند دا
هسي حال راغلي وه چه که چري دغه حال په ځوان راغلي وي نو زوړ شوي
به وه او بیا په خپلو سترگو مِ ولیده او ومِ پیژانده چه زمري وه او ته
لا بیا رانه وایي چه دغه زمري نه وه دَ توقو ځیره وه * لونبړي وویل چه ځه
وکړم چه ستاسو په خیل‌خانه کښ عقل نشته دي اوکه نه وِي نو داسي
خیالونه به زړه کښ راوړل او بد بد گمانونه په دوستانو کول کله مناسب
دِي اوکه ستا عقل وي نو دغه خو نه زمري وه او نه بل څه وه او که چري
رښتیا زمري وي نو هم ځما نه به دِ زړه نه وه بد کړي * مطلب دا دي چه

خره ډیر خه وکړل لیکن لونبړي دَ هري خبري ځواب وله پوره پوره ورکړچه
خر لاجوابَ شه او لوړه هم پرِ غلبه شوله نو بیا ئي په حیلو او په مکرونو
سره روان کړ چه دَ زمرِي ځاي له لاړل زمري پټ شوي وه تر هغه پوري ئي
غرض نه کاوه چه څوئي یقین حاصل شه چه اوس به نه شِي خلاصیدې
جوړ هلته ئي پرِ ور ترپله دستِي ئي را ونیوه او چمغرک ئي وله مات کړ پس
دَ هغه له ماتولو زمرِي لونبړي ته ویل چه ته دلي اوسه فهم کوه او زه
لکوټي څم چه اوبه وڅښېم ÷ چه زمري اوبو له لاړ شه جوړ لونبړه لګیدلي دَه
دستِي ئي دَ خره ګیډه څیري کړي دَه او زړه ئي ترِ وکښه زورور ئي وخوړ بیا ئي
خوله وڅټله پنجي ئي پاکیزه کړلي کښیناستله ÷ چه زمري له اوبو نه راغي نو
مینه ئي وشوه ویل ئي چه اول خو له دي خره نه زړه وباسم چه وخورم
بیا به نور په آرام سره کیږي ÷ چه وئي کتل زړه ئي په کښ پیدا نه کړنو وئي
ویل چه لونبړي ددي خره خو زړه نشته ÷ هغي وویل چه بي شکَ صاحبَ
نه به وِي ÷ زمرِي وُویل چه دا څنګه چل دي چه خر شته او زړه ئي نشته ÷
لونبړي ویل چه په دي کښ حیرانتیا نشته، چه دده زړه نشته عجیبه خبره
به هاله وَه چه زړه ئي وي او دوباره دلته راغلي وي دا خو ئي زړه نه

وه څکه راغي او تا مات کړ + زمري وَوِ چه رښتيا دِ وُويل +

# حکايت نه څلويښتم

دَ کينه کو خپل ځان ته نيکي نه زره کيږي نو په بل به ئ څه رنګ پيرزو شي + لکه يو دري تنَ سړي په يوه لار کښ سره ملګري شول نو يو له بل نه ئ سره پوښتنه وکړه چه له خپل کورَ بهر ولي ځيءِ اوځه له ځيءِ + يو وُوِچه ځما په کور محلت کښ ښائسته ښائسته ځوانان دِي چه دَ هغو جامه ښکي خلقي لونګيءِ پيزي نور اسباب وويم نو ورنه کتلي نه شُم جوړ په دي سبب له ملک ورکيدلى مِ خوښ دِي + دويم وُوِ چه ځما هم دغه حال دى او دغه مِ سبب دي + دريم وُوِ چه ناسو دواړه ځما سره په غم کښ شريک يئِ مطلب ځمونږ د دري واړو يو دي + چه حال معلوم شه چه دري واړه يو شان دِي نو سره يو ځاي روان شول چه په لارِ تلل يوه هميانئِ ئ وسوندله جوړ دري واړه سره کښيناستل او و ئ ويل چه راځيءِ چه دا مال هم په دي ځاي ووېشو اوخپل وطن ته بيرته وګرزُو + ولي هر يو له کيني نه په دي نه راضي کيده چه کُندِ بل منګري ئ خپله حصّه واخلي + نه ئ دا قوّت وه چه کُندِ زر ئ وېشلي وي او نه ئ داسي طاقت وه چه په ځاي ئ پريښودلي وي او

دوي تږ تږي وي + يوه شپه او يوه ورځ وږي تږي بيخوب بي خوراک ناست
وُو په بند بهبود نه پوهيدل + ناګهانه بادشاه دَ هغه وطن سره دَ اميرانو او
وزيرانو په هغه ځاي پيښ شه چه دوي ئي وليدل نو تري ئي پوښتنه وکړله
ويل ئي چه تاسو څوک يئِ او دلته څه کوئِ + دوي ورته خپل حال ووايه چه
مونږ په دي شان راغلي يو او داسي قصه را ته پيښه شوي ده + نو اوس
مو دا مطلب وه چه څوک پيښ شوي چه څمونږ داجګړه ئي خلاصه کړلي +
بادشاه وَوِ چه تاسو هر يو خپل خپل بيان دَ خپلي خپلي کيني راته په رښتيا
سره وکړيئِ چه زه په حال پوه شم نو هغه رنګ حکم به وکړم + هغه يو وُوِ
چه ځما خو دا نيّت دي چه دَ هيچا سره مِ نيکي و نه کړلي او هيڅوک ځما له
لاسَ خوشحالَ مه شولي + دويم وُوِ چه ته خو ډير ښه سړي يي ستا خو هډو
بدنيتي نشته بدنيتي خو ځما ده چه بل څوک دَچا سره ښه وکړي نو هم ډيري
ورځي زه خپه يم + دريم وُوِ چه تاسو خو دواړه بزرګان يئِ زړونه مو له کيني
نه پاک دِي ځکه چه ځما دوېره کينه دَه چه وايم چه ما سره هم چا ښه ومه کړي
چه نوم دَ نيکئِ او دَ احسان له جهانَ ورک شي + بادشاه چه دا خبري واوريدلي
له حيرانتيا نه ئي ګوتي په غاښو چيچلي او دَ فکر په تال زنګيده بيا چه ډير

ساعت تېر شه نو دَ هغه ورځې په حق کښې ئې حکم وکړ چه دې
خو بهر وشړئ او چه څه ورڅخه وي هغه تر ټول واخلئ څکه چه دَ بل
سره نیکي نه کوي نو دَ ده سره هم نیکي پکار نه ده * او دَ دویم په حق
کښې ئې وفرمایل چه دې خو مړ کړئ څکه چه خلق سره یو بل نیکي کوي
نو دده غم زیاتېږي نو دَ کړېدن د ژوندانه نه ئې وژل بهتر دي *
او دَ درېم دپاره ئې وویل چه په ده ژغره پوري کړئ او په لوز ئې
واچوئ چه په سختئ کښې هلاک شي * دري وارو سره ئې په
مناسب دَ خپلو نیتونو معامله وکړه دستي ئې حکم پرِ جاري کړ *

په هر دم په هر زمان پکار ده ژبه — د همه وارِه جهان پکار ده ژبه
ناآشنا آشنا کوي سره خبري — په خبرو نژدې کېږي خلق لرې
چه دَ چا خوله کښې خوږه ژبه غړېږي — دَ مچانو په شان خلق پرِ بونږېږي
د تورزن به پکار نه وي همه توره — لکه ژبه چه هر ځای کښې وي منظوره
کار و بار د مصلحت په ژبه کېږي — مصلحت دَ سلطنت په ژبه کېږي
که کاتب دي که کاغذ دي که قلم — ټول دَ ژبې خدمتکار دي دم په دم

په مرغانو کښې طوطي دي عزّتمند
دا په دا چه ښي خبري کړي دَ خوند

مګر دوه شرط په ژبه کښې ضرور دي
دغه دواړه ضروري په ښه دستور دي

اول دا چه ښي صحيح کوي خبري
چه خبري شي په مثل مرغلري

بل په بدو دِ خوله نه خوځوي خپله
تل دِ سم په اندازه وي لکه تله

بده ژبه دَ سري په ځان بلا شي
خوږه ژبه له سري چاپير قلا شي

هر سړي دَ سړيتوب دعوي چه کاندِ
ځان دِ يوه کاندِ په دِيرو ژبو باندِ

په يوه ژبه مطلب نه پوره کيږي
که هوښيار وي هم له سرَ نه پوهيږي

که حاکم وي غور هيڅ نه شي کولي
که عالم وي طالب نه شي لولولي

په سفر کښې لکه نقش دَ ديوال
ګنګ ولاړ وي بي‌طاقتَ بي‌مجال

خصوصًا چه پښتو ژبي ته حاجت
پيښ وه ډير زياتي له حدَ دا ساعت

احمد وکړ په دا شان آسان کلام
چه پوهيږي پرِ کُل واړه خاص و عام

تاریخ

# د سلطانِ محمودِ غزنوي

چه مولوي احمد له تاریخِ فرشته نه

پښتو کړي دي

# تاریخ
## دَ سلطانِ محمودِ غزنوي

جمع کونکو دَ تاریخونو په مبارکو قلمونو سره په پاڼو دَ تصنیفونو خپلو هسې لیکلِي دِي چه سلطانِ محمودِ غزنوِي یو بادشاه وه چه نیکبختِي دَ دین او دَ دنیا ئِي نصیب شوي وَه ÷ او دَ عدل او دَ انصاف شورئِي په هر لور خپور شوي وه ÷ او په کار دَ غزا کښې ئِي نښانونه د اسلام ودرولِي وُو او بیخونه د ظالمانو ئِي وکښلِي وُو چه به جنګ له روان شه تا به ویل چه کُندِ سیلاب دي چه په لوړه او په ژوره برابر بهیږِي ÷ او چه په تخت به کښیناست نو دَ سرِي به ګمان وشه چه هسې نور دي چه رڼا ئِي په خاص و عام لګیږِي ÷

هم ئِي عقل هم ئِي زور وه هم ئِي بخت      په دي وارو وه لایق دَ تاج و تخت

مګر په بعضِي کتابونو کښې لیدلِي شوِي دِي چه دغه بادشاه ډیر بخیل وه لیکن

نسبت د بخل هغه بادشاه معتبر نه له انصاف بهر معلومیږي ٭ ځکه چه دوره
ملکونه لاندِ کول او عالمان او شاعران په مجلس کښ کښینول بغیر له دنیا ورکولو او
بي له مال بخښلو نه برابریږي ٭ او دا ظاهره خبره دَه چه بي له مقرّري وظیفي
نه ځاورلکه روپیږ به ئي لایقو لایقو خلقو ته بخښلي او قسم قسم مهربانګئ به
ئي کولي او فائدي به ئي هرچا ته رسولي ٭ هان دا دوه خیز که دَ بادشاه دَ
بدنامئ سبب وِي نو به وِي ٭ یو زره بداوي دَ فردوسي شاعر سره کول بل په آخر
عمر کښ زر له خلقو آخستل ٭ وایي چه بادشاه په ظاهر صورت ښائسته نه
وه ٭ یوه ورځ ئي آئینې ته وکتل خپل مخ ورته ناکارَ ښکاره شه نو یو وزیر
ته ئي وویل چه خلق وایي چه دَ بادشاهانو مخ ته کاته نظر زیاتَوِي او څما داسي
رنګ دي چه په لیدو ئي دَ سړِي زړه خپه کیږِي ٭ وزیر ورته وُوِ چه صورت
ښائسته کول تا له څه پکار دِي خوي ښائسته کول مناسب دِي چه هر څوک
دربانِ مین شِي ٭ داخبره دَ بادشاه ډیره خوښه شوله او عمل ئي پرِوکړ په ښه
خويِ کښ هسي حد ته ورسید چه له ټولو بادشاهانو نه تیر شه ٭

پلار د بادشاه امیر سبکتکین دي او مور ئي د زابلستان د یو سردار لوروَه له دي
سبب ورته زابلي ویلي شي لکه چه فردوسي شاعر ئي صفت کړي دي ٭

زابلي سلطان محمود هسي درياب دي ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ چه ئي غاړه چرته نه ده چا ليدلی
مرغلره تږِ را نه غلله په لاس کښ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ درياب ښه دي کله کړم له بخري خپلي

په شپه د عاشوري په سن دري سوَ اوه پنځوس هجرِي کښ پيدا شوي دي ÷ او جرجانِي په منهاج السّراج کتاب کښ کښلِي دِي چه طالع د سلطانِ محمود د طالع دَ خاوند د ملّت د اسلام سره موافق وه ÷ او يو ساعت وړنبي له پيدا کيدلو دده نه امير سبکتګين په خوب کښ وليدل چه دَدوي له نغرِي نه يوه لويه ونه پورته شوله چه تمام جهان ئي په سوري ځائبده ÷ چه له خوبَ بيدار شه نو د تعبير په فکر کښ وه چه ناګهانه چا پرِ زيري وکړ ورته ئي ووېل چه مبارک شهَ فرزند دِ وشه ÷ امير سبکتګين ډير خوشحالَ شه او د دغه نيک خوب په سبب سره ئي نوم د فرزند محمود کيښوده او اميدوار د لويِي مرتبي او د عزّت شه ÷ بيا په لږه موده کښ ئي بوټي د اقبال په هسي شان سوري پيدا کړ چه ډير عالم ئي د سورِي لاندِ کښيناست ÷لکه دا بيتونه د فردوسِي په دي خبره شاهدِي ورکوِي ÷

بادشاهيِ کښ د محمود غازِي سلطان ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ کړه شرمښ اوبه څښبي په يو مکان
چه هلک وړنبي له مورَ پيدا شِينه ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ په ژانګوکښ د محمود نوم يادوِينه

په دغه مُده کښ په حکم د اميرِ سبکتګين سره بتخانه دَ هندوانو چه په غاره د
سودري د ابو وَه ورانه ئي کړله او برابري د طالع خپل ئي د طالع د خاوند دَ دين سره
وکړ + او په اول کال دَ بادشاهئِ دده کښ يو کان د سرو زرو په شکل د ولي
په سيستان کښ له زمکي نه راښکاره شه او هر قدر چه به چا کنوده خالص
زر به تر راوتل او کبر چاپير ئي دري کز ځاي نيولي وه بيا په زمانه د سلطانِ مسعود
کښ هغه کان په سبب د زلزلي ورک شه + بيا چه سلطان دَ ورور له مهم نه
وزګار شه نو مخ ئي بلخ ته کړ او په سبب ددي چه اميرالامرائي د خراسان منصب
دده وَه بکتوزن ته سپارلي شوي وَه يو قاصد ئي بخارا ته امير منصور له ورو ليکه
او خپګان خپل ئي ور ته ظاهر کړ + هغه خواب ورکړ چه امارت د بلخ او دَ ترمِذ
او د هرات مِ تا له درکړي دي ليکن بکتوزن يو خيرخواه سړي دي بي هيڅ ئي پاڅول او
له نوکرئِ نه وکښل مناسب نه دِي + سلطان ابوالحسن د جموئي د ډيرو پيشکشو سره
بخارا ته واستاوه او امير منصور ته ئي وويل چه اميد دي چه چينه د دوستئِ او
د اخلاص به په خاورو او په خاشاک د بي پروائِي نه خړوئِ او حقونه خما او خما دَ
پلار چه ستاسو په ذمه وُو هغه به نه ضايع کوئِ دپاره ددي چه مزي د دوستئِ
و نه شليږي او بناد متابعت و نه نړيږي + ابوالحسن دَ جمو چه بخارا ته ورسيده

امیر منصور ونکیده دي ئي د خان وزیر کړ او دَ سلطان د خبري ئي هیڅ څواب ور نه کړ + سلطانِ محمود په طرف د نیشاپور روان شه او بکتوزن چه په نیّت دده پوه شه نو په بل طرف لاړ شه او عریضه د حال خپل ئي بخارا ته و لیکله + امیر منصور په کبر او په ناداني او په غرور د ځواني مست وه لښکر ئي جمع کړ خراسان ته را روان شه او نو سرخس پوري ئي هیڅ نه دمه ونه کړله + سلطان اګر که ښه پوهیده چه امیرِ منصور دده سره برابري کولي نه شي لیکن له پیغور او له بدنامي دَ نمکحرامي نه ویریده نو نیشاپور ئي ور ته پریښود او مرغاب ته لاړ شه + ناګهانه بکتوزن په مصلحت د فائق تکي وکړه امیر منصور ئي ونیو او سلائي ئي په سترګو کښې ورواهه روند ئي کړ او ورکي وروړ دَ هغه چه عبدالملک نامه ئي لرله په تخت ئي کښیناوه او بچپله له سلطانَ ویریده مرو ته وتښتیده + سلطان ورپسي روان شه مرو ته ورسیده + بکتوزن او فایق کار نالایق اختیار کړ جنګ ئي له سلطانَ سره په میدان کښې وښداوه مګر بري دَ سلطان نصیب شه + او فائق عبدالملک له خان سره کړ بخارا ته لاړ شه + او بکتوزن نیشاپور ته وتښتیده څو وقت پس دَ تښتیدلي لښکر د جمع کولو دپاره بخارا ته بیا ورغي + ناګهانه په دغه مُده کښې فائق ناجوړه شه او مړ شه او ایلک خان له کاشغر نه

بخارا ته لاړ شه او عبدالملک ئې سره د تابعانو قتل کړ بنځ ئې وکښېښ او دولت
دخېلخاني د سامان چه اته دېاسَ شپږ شلي کالَ وه آخر ته ورسیده ٭ او سلطان
محمود په حکومت د بلخ او د خراسان مشغول شه ٭ هر کله چه دبدبه د بادشاهت
دده اطرافو د جهان ته ورسیدله نو خلیفه د بغداد چه مشهور په اَلْقَادِرُ بِاللهِ
عباسِي وه یو خلعت د ډېر قیمت ئې سلطان ته ولېکه چه په دغه شان خلعت
هیڅ یو بادشاه بل بادشاه ته نه وه لیکلي ٭ بیا په سن دري سوَ نوِي هجرِي کښ
د میاني په میاشت کښ له بلخَ هراتَ ته لاړ شه او له هراتَ سیستان ته
ورغي ٭ او حنیف بنِ احمد د هغه ځاي حاکم ئې له حکمَ لاندِ کړ بیا غزنین ته
ورسیده ٭ او هم په دغه مُده کښ هندوستان ته روان شه او هلته ئې یو څو
قلا ونیولي او بیا بېرته راوګرزېده ٭ په هسي شان ئې بیچاونړه دَ عدل په فراخه
زمکه وغوړوله چه محبت دده دَ هرچا په زړونو کښ پیدا شه ٭ او ایلک خان چه
ماوراءالنّهر په یووار دَ سامان له اولادَ خالِي کړ نو خط دَ فتح او د بري ئې سلطان
ته واستاوه او مبارکِي ئې دَ بادشاهِيِ دَ خراسان ورته ووېله ٭ په دي سبب سره
د دواړو بادشاهانو په مېنځ کښ دوستِي محکمه پیدا شوله ٭ او سلطانِ محمود هم
ابوالطیب لره چه نوم ئې سهل وه زوي د سلیمانِ معلوکِي وه او امام دَ علمِ حدیث

وه په طریقه د قاصدیٔ ایلک خان ته دپاره د نکاح کولو د یوې شاهزادګۍ واستاوه او قسم قسم یاقوت او لعلونه قیمتناک او حسبلونه د مرغلرو او هګیٔ د عنبرو او لوښي د سرو او د سپینو زرو ډک په خوشبوئو او په کافورو او نوري پیشکښئ د هندوستان او وني د عودو او توري آبداري او هاتیان جنګیږن جوړکړي سنبالکړي چه ستر‌ګې د تماشګیر به ئې په لیدلو خړې کیدلې او راهداو اسونه پر دپاس زرین زینونه ئې ور سره کړل ۞ چه امام ابوالطیب د ترکستان وطن ته ورسیده خلقو د هاغه وطن چه اکثر په زمانه د ایلک خان مسلمانان شوي وُو د ده ډیر تعظیم او عزت او مدار وکړ ۞ او دي په اورکند کښې تر هغه معطل وه چه تر ایلک خان اجازه د ملاقات وکړله ۞ بیا هغه مرغلره چه په دریاب د ترکستان کښې ورپیدا کیږي موجود شوي وه هغه ئې سره د قیمتي اسبابونو د همغه وطن او سره د سوچه سرو سپینو او سره د وینځو د ځِطا او د پیٔ مخو د ختن او سره د قاقمو او د سمورو او سره د نورو پیشکشو په خدمت د بادشاه کښې حاضره کړله ۞ پس له هغه ډیر عمر په مینځ د سلطان او د ایلک خان کښې دوستي او محبت زیاتیدل ۞ تر هغه پورې چه په سبب د بد نظر لګیدو د زماني او په سعي د غمازانو دوستي او محبت د دوي په دښمنئ او په عداوت بدل شول لکه چه زر به ذکر د دي خبرې وشي انشآء الله تعالیٰ ۞

او سلطانِ محمود په سبب د دې خبرې چه ويلي يې دُو چه هر کله چه د بادشاهت
له کار و بارَ وزګار شم نو اکثر عمر به هندوستان ته خَتم او غزا به کوم په مباشت
دوړکي اخته کښ په سن دري سَو يو نوي هجري کښ له غزنين نه يې اراده د
هندوستان وکړه د لسو زرو سورو سره پښاور ته راغي . او جيپال د دو لسو زرو
سورو او د ديرشو زرو پيادهٔ او د دري سوو هاتيانو سره راغي جنګ يې طيار کړ
په ورځ د کل په اتمه د مباشتي د حسن حسين په سن دري سَو دوه نوی
هجري کښ جنګ يې ونښتلاوه . سلطانِ محمود ډيره مړانه وکړه بري يې نصيب
شه نوم يې په غازي سره مشهور شه . او جيپال يې د پنځلسو سرو سره چه څوک
يې خاص وُو او څوک يې خپلوان وُو په بند راوست او پنځه زرَ هندوان يې قتل
کړل او ډېر لوټونه يې راوړل . او د هغه بنديانو د غاړي نه يې شپاړس حميلونه
وکښل چه په هندي ژبه کښ هغه حميل ته مالا وايي او خلقو د هر يو حميل
يو لک اتيا زرَ اشرفۍ قيمت مقرر کړ . بيا سلطان له پښاور نه په ګهنده ورغي
هغه ملک يې هم د حکم لاندي کړ . او هر کله چه مده د پسرلي شوه نو جيپال او
نورو بنديانو له يې پس له قبلولو د قلنګ امان ورکړ له قيدَ يې خلاص کړ . او دير
غټ غټ پښتانه يې وژل او ځيني يې چاکران کړل غزنين ته يې له ځانَ سره روان

کړل

کړل ‌* دستور د هندوانو دا دي چه هر راجه چه دوه ځل له مسلمانانو نه مات شي یا بندي شي دوباره لایق د بادشاهت نه وي او ګناه ئې بي له اور نه پاکیږي نو په دي سبب سره جیپال خپل زوي چه انندپال نامه ئې وه بادشاه ئې کړ او ځان ئې په اور کښ واچاوه او وئې سیزه * او سلطان محمود په میاشت د حسن حسین کښ په سن دري سو دری نوي هجري کښ بیا سیستان ته لاړ شه او حنیف ئې په دغه وار غزنین ته راوست * بیا ئې مینه د هندوستان په زړه کښ پیدا شوه په سن دري سو پنځه نوي هجري کښ په طرف د هغه ښهرچه بهاطیه نوم لري لاړ شه اوچه له حدودو د ملتان نه تیر شه نو په هغه ځاي کښ ئې ډیره وکړله * او د هغه ښهر همره لویه قلاوه چه کرګس مارغه ئې سر ته نه شه رسیدي او چاپیره تر هسي خندق وه چه د نظرباز نظر ئې په بیخ نه شه لګیدي * نوم د هغه ځاي د راجه بجی راو وه او په سبب د ډیرو سپاهیانو او د هاتیانو هسي مغرور وه چه نه ئې د سردارانو د امیر سبکتګین پروا لرله او نه ئې د جیپال فرمانبرداري کوله * هر کله چه سلطان محمو دپاره د دفع د ده لښکر هغه طرف ته راکښه ده سپاهیان خپل جمع کړل او په برابر د لښکر د اسلام ئې صفونه جوړ کړل * دواړو لښکرو سره دري ورځي جنګ وکړ لیکن سلطان ته مسلمانان عاجز ښکاره شول په

خلورمه ورځ يُې حکم واوراوه چه نن به بادشاهي جنګ وِيِ زور زلمي نوکر چاکر دِ ټول ځانونه سنبال کړي چه غزاته په میدان کښ حاضر ږشي + او راجه بجيراو چه په دي مصلحت خبر شه بتخاني ته لاړ شه او په بتانو نسکور پريوت او مدد يُې ور نه وغوښت او هندوان يُې په دباو او په دیدبه له ښهرَ بهر راوکښل او د جنګ په ځاي کښ ودريدل + او اميرانو د اسلام په تورو او په نيزو لاس وواهه او په بو دار يُې په کفارو حمله وکړه له وقتَ د ځابنتَ تر زوالَ پوري يُې سره جنګ وکړ او له هرَ طرفَ ډيري د مړو ودريدل او سيلابونه د وينو وبهيدل مګر ښه د کم زورتيا په يو طرف کښ ظاهره نه شوه ،:، سلطان په هغه زمان لاس په دلبار د رحمٰن ونيول او روح پاک د پيغامبر عليه السلام يُې رو بدار کړ او بچپله يُې د لښکر په مينځ بانډِ حمله وکړله لښکر يُې د کفارو مات کړ او بجيراو يُې تلابند کړ او حکم يُې د خندق د ډکولو ورکړ + هر کله چه خندق يُې په کانړو او په لوتو او په غنو او په بوټو ډکيدو ته نژدي کړ بجيراو حيران شه لښکر يُې په جنګ پرېښود او دي سره د يو څو کسانو خاصانو له قلا ته راکوز شه او يو ځنګل ته د ځنګلونو د اباسيند د غاړي ولښتيده + چه سلطان په دغه حال خبر شه نو يو فوځ يُې د تورزنو سپاهيانو ورپسي واستاوه هم په هغه ځنګل کښ يُې ګير

کړ * چه بجیراو لار د لټېنتېدلو نه موندله زر ئې خنجر له کمر بند بهر کړ اوله ډېري کینې ئې په سینې خپلې باندې وواهه * غازیان ور ورسیدل سر ئې ترې پرې کړ سلطان ته ئې روان کړ او له تیغ بې دریغ ئې سرونه د ملګرو د بجیراو په زمکه ازاد کړل او قتل ئې عظیم وکړ * اینا هاتیان او مریونه او ډېر لوټ او مالونه ئې په لاس راغلل او هغه ښهر سره د اطرافو د سلطان حکم قبول کړ او دې سره د فتحِ او د برې غزنین ته وګرزېده *

بیا په سن دري سَو شپږ نوي هجري کښ سلطان نیت د لاندې کولو د ملتان وکړ مثرانو د لښکر ته ئې حکم واوراوه چه شیخ حمید لودي امیر د ملتان به د امیر سبکتګین سره اخلاص کاوه او له خدمت به ئې ځان نه خلاصاوه او پس له هغه د هغه منسي ابوالفتح چه نوم ئې داوٗد زوي د نصیر زوي د شیخ حمید یو له ملحدانو نه وه په اول حال کښ ئې په طریقه د پلار ښکه عمل کا وه او ځپل ځان ئې له نوکرانو د سلطان نه شماره لیکن په هغَه وقت کښ چه ښکلې د بادشاه په بهاطنه مشغول وه له ده نه خبري یدي اوریدلي شوي وي کارونه ناکارَئې له لاسَ شروح شوی وُو * سلطان په دغه کال کښ دپاره د څه مصلحت بې پروائي وکړه هیڅ ئې و نه ویل او بل کال ئې نیت د بدل دَ آخستو وکړ * له روایتَ د

زین الاخبار نه معلومیږي چه له دیې وجهې چه دي پوه نه شي هغه لار ئې پرېښو له
په بله لار روان شه * او اندپال زوي د جیپال په لارکښ و دریده لښکر د
سلطان ئې منع کاوه لیکن شکست ئې وخوړ لاړ کشمیر ته وتښتیده * او په
تاریخ د الفي کښ وائي چه هغه وخت چه ابوالفتح له راتلو د سلطان نه خبر
شه اندپال نه ئې سړي واستاوه او کُمَکْ ئې ترې وغوښت *. اندپال د ابوالفتح په
مددکاریئ له لاهور نه پېښاور ته لاړ شه او څو تنَ امیران ئې د سلطان لاري
ته ولیګل دپاره د دي چه سلطان د ملتان له تلو منعَ کاندِ * بادشاه له ډیرَ
قهرَ حکم د وړانولو د بنهرونو د اندپال په لښکر وکړ لښکر په یو وار حمله وکړه
امیران د اندپال ئې په پېښاور کښ خراب تراب کړل او اندپال چه په دي حال
خبردار شه لاړ وتښتیده او لښکر د سلطان په هغَه شان ورپسې وه چه په حدود
د سودرې کښ غاړي د چناب سیند ته ورسیده هلته کښ وډبرېده کشمیر ته
ئې مخه وکړله * سلطان په هغَه پسې لاړ نه شه په طرف د ملتان په خپل
مطلب پسي روان شه * ابوالفتح چه ولیدل چه د هند راجګانو هیڅ و نه کړي شول
جوړ خانونه ئې قلابند کړل او زارې او عذرونه ئې څرګند کړل او وعده ئې وکړه چه کال
په کال به شل زر اشرفئ په خدمت کښ رسوم او حکمونه د شریعت به جاري کړم

او له مذهبَ د ملحدانو توبه کاريم ÷ سلطان اووه ورځې ملتان قلابند کړي وه مکر په دغه صلحَ يې وعده محکمه کړه امير د ملتان له يې امان ورکړ ÷ بيا چه په طيارِي د بيرته راګرزيدو کښ شه ناګهانه قاصدان د ارسلان جاذب چه حاکم د هرات وه را ورسيدل او له لښکرَ د ايلک خان يې سلطان خبر کړ سلطان له ډيري تلواري مهم د بتهنډي سکهپال ته چه زوي د يو راجه د هندوستان وه او په لاس د ابوعلي سمجوري کښ مسلمان شوي وه او هغَه ته په يې آب سار هم وايه وسپاره اودي غزنين ته لاړ شه ÷

او بيان د احوال د ايلک خان دا شان وه چه د سلطان او د ايلک خان ډيرمده تکه حق د خسروالي او د زوم والي هغه رنک دوستي وَه تر هسې حدَ پوري چه تکه ورښې هم ذکر شوي دي چه په واسطه د فساد د مفسدانو او په سبب د سعي د غمازانو هغَه دوستي په دښمنيْ بدله شوله ÷ او چه سلطان په لوري د ملتان روان شه او په ميدان د خراسان کښ پهلوانان پاتې نه شول ايلک خان فرصت وموند او بيت يې د لاندِ کولو د هغَه ولايت وکړ سياوش تګين چه سردار د لښکر وه د ډير لښکر سره يې خراسان ته وليکه او جعفر تګين يې په شان د کوتوال په دارالملک د بلخ باندِ مقرر کړ ÷ ارسلان جاذب حاکم د هرات په دي

حال خبر شه له هراتَ غزنین ته لاړ شه دپاره د دي چه تخت د بادشاهت
وساتي * او بو توړلي د غمانو د خراسان په سبب د ډيري مدی د جدائي د سلطان
د ايلک خان سره جوړښت وکړ * هر کله چه سلطان غزنین ته ورسيده نو يو
لښکر لکه د خلقو د محشر ئي جمع کړ او بلخ ته وکوچيده * او جعفرتگين چه له
راتللو د سلطان نه خبر شه له بلخ ترمذ ته وتښتيده * او ارسلان جاذب په حکم
د سلطان په سیاوُش تگين پسي له هراتَ ووت ماوراءالنهر ته روان شه * ايلک
خان له قدرخان بادشاه د چين نه مدد وغوښت قدرخان د پنځه‌وُ زرو تنو سره
د ايلک خان په مدد روان شه ايلک خان په مددکاريِ د قدرخان له جيحون
سيندَ را پوري‌وت * او چه دولس کروَه لاړ بلخ ته پاتی شوله لښکر د سلطان
د دوي سره مقابل شه * سلطان پنځله صفونه د لښکر برابر کړل د سينځ صف
ئي کشر ورور ته چه امير نصيرالدين حاکم د جرجان وه او ابونصر فريعون ته او
عبدالله طائي ته وسپاره * او د ښي لاس صف ئي التونتاش حاجب ته حواله
کړ * او د کيڼ طرف صف ئي ارسلانِ جاذب او نورو اميرانو د پښتنو ته مقرر
کړ * او پنځه سَو هاتيان د غزونو په شان ئي د صفونو د وړاندِ قلاکړل * او له
هغه طرفَ ايلک خان پنځله په مينځ صف کښ د لښکر و دريده او قدرخان ئي

په میمنه مقرر کړ او جعفرتکین ئې په میسره ودراوه ٭ بیا دواړو لښکرو لکه د دوؤ دریابو د پاړي یو بل ته مخ کړ ٭ او له شورَ د آسونو نه ئې کور د زمکې په زلزله کړ٭ او په گردونو د سمونو د آسونو ئې میدان د آسمان خړ کړ ٭ او اور د جنګ او د جدل ئې په باد د حملو بل کړ ٭ له هغه لوري ایلک خان پخپله په جنګ مشغول شه ٭ له دې خوا نه سلطان له آس نه کوز شه او پاک پروردګار ته ئې سر په سجده کیښود او لاس د دعا او د زارئ ئې پورته ونیول او تکیه ئې په مهربانئ د مهربان خدای وکړه او په هاتي مست باند سور شه او حمله ئې په لښکر د ایلک خان بوتله ٭ ناګهانه هاتي د سلطان نشان چي د ایلک خان په خرطوم ونیوه اوپه زمکه ئې وویشت پس له هغه په صف د ترکانو ورغي ډیر ئې هلاک کړل ٭ هر کله چه غازیانو ولیده چه سلطان پخپله په خان په میدان کښ د جنګ ورګډ شه جوړ بې اختیارَ له یو وارَ ور ورغلیدل او توري ئې وویستلې ډیر ترکان ئې په هغه زمان قتل کړل ٭ قدر خان وار خطا له خانَ ناامیدَ په چټو هنزونو له جنګ ولښتید او چه له اوبو د جیحونَ پوري وت نو هیچرته ئې دمه ونه کړله چه خپل وطن ته ورسیده او دوباره ئې د خراسان خیال په خاطر کښ را نه وړ ٭ او په تاریخ یمیني کښ لیکلي دي چه سلطان پس له تښتې د ایلک خان په هاتي پسې روان

شه لیکن ماده د ژمي وَه یخني له حدَ زیاته وَه طاقت د هیچا نه کیده د اکثرو امیرانو
داخوښه وَه چه په ماتې پسې نه تللې مګر چه سلطان بخپله په کوشش کښې وه
نو خواه مخواه دوه منزلَ ور پسې لاړل په دریمه شپه په یو بیابان کښې ډیره شول
درسته شپه واوره ووریدله او یخنيَ له حدَ زیات زور وکړ * او د سلطان دپاره
يې یوه لویه خیمه ودروله او منقلونه يې ډیر کیښول خیمه يې په هسې شان ګرمه
کړله چه اکثر خلق له ګرمئ نه زړوکو غورزلو ته جوړ شول * په دغه ساعت کښې
ولچک په دروازه د خیمي را ننوت سلطان ورته په ټوقو سره ووې چه ولچکَ لاړ شه
بهر یخنيَ ته ووایه چه ولي مري او له ډیري سرديَ نه دِ ځانکندن دي مونږ خو
دلته له ګرميَ نه جامو وکښلو ته طیار یوُ * ولچک في الحال بهر لاړ شه او دستي
دننه راغي عرض يې وکړ چه زیري د بادشاه م یخنيَ ته ورساوه هغه وايُ چه اګر
چه لاس م په سلطان او د سلطان په امیرانو نه رسیږي لیکن د نوروُ نوکرانو
به هسي خدمت وکړم چه صبا له به سلطان او امیران او سرداران د آسونو
خدمت بخپله کوي او له ما نه به هیڅ تقصیر په دغه خدمتګاريَ کښې و نه ویني *
سلطان اګر که ظاهر دغه خبره په ټوقو تیره کړله مګر په زړه کښې له دغه نیت
پښیمان شه قصد يې دبیرته ګرزیدلو وکړ .. ناګهانه هم په دغه شپه کښې له

هندوستانَ خبر را ورسیده چه آب‌سار مرتد شه بیا اصلي دین خپل ته وګرزیده
او هغه میدان ور ته خالي بنکاره شه کارداران د سلطان ئي تول وشړل *
سلطان صبا له واکي د قصد میدان د هندوستان ته وګرزولي کوچ په کوچ ئي منزل
قطع کاوه روان شه او هغه امیران چه جاګیرونه د هندوستان ئي خواره ورتني ئي
ولیکل آب‌سار ئي وبنو دربار ته د سلطان ئي حاضر کړ * سلطان څلور لک
روپۍ نړِ واخستلي تګین خزانچي ته ئي وسپارلي او دي ئي بند کړ چه هم هلته کښ
مړ شه * او سلطان په دغه وقت کښ غزنین ته را وګرزیده په بیچاونړه د آرام ئي
تکیه ووهله په قرار شه *
بیا په سن دري سَو نه نوِي هجرِي کښ په نیت د جنګ ورکولو د اندپال چه په مقدمه
د ملتان کښ ئي بي‌ادبي کړي وَه لښکر ئي جمع کړ هندوستان ته ئي کوچ وکړ * اندپال
چه په دي حال خبر شه نو له راجګانو د هندوستان نه ئي مدد وغوښت * هر
کله چه هندوانو ته د مسلمانانو سره جنګ ثواب بنکاریده نو خواه مخواه تول راجګان
جمع شول نز هسي حدَ پوري چه راجه د اوجین او د ګوالیار او د کالینجر او د قنوج
اوَد دهلي او د اجمیر کل واړه په مددګارئ را غلل او فوځونه فوځونه لښکر ئي
پنجاب ته را روان کړ * او لکه چه په زمانه د امیر سبکتګین کښ جمع شوي وه دا

وار لښکر له هغه وار نه زيات جمع شه او د انندپال سره په شاهي صحرا ته د پښاور راغلل ✢ څلوېښت ورځي په مقابله د سلطان کښې پرېوتل ليکن هيڅوک له دواړو لښکرو نه جنګ ته نه وړاندِ کيده مګر لښکر د کفارو ورځ په ورځ زياتيده او له هر طرف نه به وله خلق را چليده ترهسي حده پورې چه کفار د ګهکر هم په دغه سفر کښې ور سره ملګرِي شول ✢ او همره سخي ئې په جنګ کښې کوله چه کفرو ښځو به کالِي خرڅول او خرڅ به ئې په ښځتانو پسي رالېږله دپاره د دې چه نارينه ئې جنګ ته وزګاروي ✢ او هغه ښځه چه لاس به ئې نه رسيده هغې به چرخه وريشله او مزدوري به ئې کوله او خرڅ به ئې لښکر ته را آستاوه ✢ هرکله چه سلطان پوه شه چه دا وار کفار په ډېر اِخلاص سره ځان د جنګ دپاره طيارِوي نو دوه‌وُ طرفو د لښکر ته ئې خندق وکنووه او جنګ ته ئې ځان برابر کړ ✢ بيا زر تنَ غش‌لاسِتي ئې وړاندِ وليږل هغو به چلونو او په حيلو سره لښکر د کفارو ګرم کړ او په ځان پسي ئې روان کړ ترهسي حده پورې چه خپل لښکر ته ئې لښکر د کفارو نږدې کړ ✢ او مسلمانان په ښه اتفاق سره په دفع کولو د کفارو مشغول شول ✢ او سره د ډېرَ احتياط د سلطان ديرش زرَ لښکر له کفارو د ګهکر په عينِ مقدمه کښې په خندقونو د دواړو طرفو را واوړيدل او په مينځ د سورو کښې را ننوتل او

شِلَکي او نوري او خنجرونه يُ وچلول او ډېرِ سرِي او آسونه يُ پرېښتل ترهبي حد پورې چه په سترګه رېول کښ يُ خلور زرَ تنَ شهيدان کړل بلکه دي حد له خبره راغله چه سلطان دي کار ته جوړ شه چه له لاسَ د ګهکريانو له ميدانَ په ډډه شي او جنګ موقوف کړي ✲ ناګهانه د انندپال هاتِي له آوازونو د توپکو او له بوېونو د دارو نه ووبربده لاړ وتښتيده لښکرو ګمان وکړ چه ګُندِ راجګانو يتښتنه وکړه جوړه توَلو ماتي ګډه کړله ✲ عبد الله طائِيُ د پنځهؤ شپږو زرو سورو د عربو سره او ارسلان جاذب د دوهؤ زرو سورو د ترکو او د پښتنو او د خلجيانو سره دوه شپي او دوده ورځي په دنبالِ د ماتي لاړل اته زرَ کافران يُ قتل کړل اوډېرش هاتيان او ډېر لوټ يُ راوړ د سلطان دوړاندِ حاضر شول ✲ سلطان پس له هغَه د دين نبوِي د محکمتيا دپاره نيت د غزا د کفارو د نګرکوټ او د ورانولو د بتخاني د هغو وکړ روان شه ✲ او په هغَه مده کښ هغَه قلا د بهيم په قلا بانډِ مشهوره وَه چه سلطان ورورسېده حکم يُ د هغي قلا د قلابندِيُ ورکړ اوګير جاپېر د اطرافو خلق يُ ډېر ووژلل ✲ او هغَه قلا په زمانه د راجه بهيم کښ په سر د يو غره بانډِ ودانه شوِي وَه او هندوانو به هغي قلا ته مخزن الاصنام يعني خزانه د بتانو نوم وايه ✲ او راجګانو د ملکونو به سره او سپين او مرغلري او لعلونه او مرجان او نور مالونه دربيګل او په دغه

كار كښې به يې فايده د دوارو جهانو كښرله ‥ له دې سبب په هغه قلا كښې دومره مال
جمع شوي وه چه د يو بادشاه په خزانه كښې دا قدر مال نه وه جمع شوي ‥ اوچه هغه
قلا له تورزنو ځوانانو خالي وه او بغير له بامبنړانو په كښې بل څوک نه وو نو خواه مخواه
د هغو په زړونو كښې هيبت پريوت اوچغې د امان غوښتو يې آسمان ته ورسولې
او په دريمه ورځ يې دروازه د قلا لرې كړله او بامبنړان راغلل سلطان ته يې
سلام وكړ ‥ بيا سلطان د يو څو تنو خاصانو سره قلا ته ننوت اووه لک اشرفۍ او
اته سوه مَن لوښي د سرو سپينو او دوه سوه مَن طلا خالص او دوه زرٌ من
سوچه سپين زر او شل مَن قسم قسم جواهر چه له زماني د هيم نه جمع شوي
وو او په تصرف د ديوانيانو كښې راغلي وو واړه سلطان ته ورسيدل پس
له هغه سلطان غزنين ته وگرزيده ‥
او په سن څلور سوه هجري كښې سلطان له بنهرَ بهر ووت اوڅو تختَ د سرو
او د سپينو يې په دربار كښې كيښودل او هغه لوټونه چه په هغه سفر كښې په
لاس ورغلي وو هغه يې صحرا ته وولېستل او سړي د بنهر او د كلو د تماشي
دپاره ډير جمع شول ‥ او تر دري ورځو پوري دغه مخلوق جمع وه قسم قسم
مجلسونه كيدل او هغه مال يې په صالحانو او عاجزانو باندِ وويشه او د

خلقو زړونه يې بنه کړل *

او په سن څلور سوَ يو کال هجري کښ يې لښکر غور ته ووليسته * او محمّد بنِ سورِي د هغَه وطن حاکم د لسو زرو سورو سره سلطان له د جنګ دپاره را ووت او له وقتَ د ګمرختلو نه تر نيمي ورځي پوري جنګ وشه غوريانو ډيره ځوانمردِي وکړله * سلطان چه نوره د دوي ولېدله نو حکم يې وکړ لښکر يې په تکيِ سره بيرته روان کړ * د غوريانو ګمان وشه چه ګنُر سلطان مات شه له خندقَ را ووتل ور پسي روان شول * چه د صحرا سينځ ته ورسېدل نو سلطان حکم وکړ سپاهيانو په بيرته پېر وکړ غوريان يې ډير قتل کړل او محمّد بنِ سورِي يې بنديوان سلطان له روان کړ مګر هغه له ډيرَ غمَ عَمي د زهرو وخاته د سلطان په مجلس کښ مړ شه او هغَه وطن د سلطان په تصرف کښ داخل شه *

او په تاريخ يميني کښ ليکلِي دِي چه حاکمانو د غور او رعيّت خلقو د هغه ځاي تو هغَه وقتَ پوري دين د اسلام نه وه قبول کړي * مګر صاحب د طبقات ناصري او مبارک شاه روذي چه تاريخ د بادشاهانو د غور يې په نظم کښ ليکلي دي ويلي دِي چه غوريان په زمانه د خلافت د اميرالمؤمنين علي بنِ ابي طالب رضي الله عنه کښ مسلمانان شوِي وو او په زمانه د بني اميه ؤ کښ تمامو مسلمانانو په خيلخانه د

پیغامبر علیه السلام پوري بي ځایَ خبري کړي دي مګر په ولایت د غور کښې هیڅا څه نه دِي ویلي له دي سببَ هغه وطن په ټولو ملکونو باندِ فخر کوي ۞ او هم په دغه کال کښې بل وار له غزنین نه ملتان ته لاړ شه او هغَه ځاي ئې په زور او په غلبه سره فتح کړ او له قرامطهؤ او له ملحدانو نه ئې قتل کړل او د ډېرو ئې پښې او لاسونه پرېکړل او داوود بنِ نصیر ئې ژوندي په بند کښې راوست او د ځیل ځان سره ئې غزنین ته بوت او په قلا د غور کښې ئې بند کړ هم په هغَه ځاي کښې مړ شه ۞

او په سن څلور سَو دوه هجري کښې دوباره مینه د غزا ئې پیدا شوله او نهانیسر ته چه له ملکونو د هندوستان نه دي روان شه ځکه چه چا ورته وویل چه نهانیسر په نزد د هندوانو په عزت کښې بلا تشبیه د مکي معظمي په شان دي او په هغَه کښې یوه بتخانه دَه بتخانې چه ډیر بتان په کښې هندوانو جوړ کړي دِي او غټ بت په هغو کښې جګ سوم نامه لرِي او اعتقاد د کفارو دا دي چه له کوم وقتَ چه دنیا پیدا شوي دَه دا بُت ور سره پیدا شوي دي ۞ اوچه سلطان د پنجاب ملک ته ورسیده نو په سبب د دي خبري چه انندپال سره ئې وعده کړي وَه چه زه به تا ته ضرر نه رسوم ورښي ئې سړي ور واستاوه او ورته ئې

وويل چه اندپالَ خبر شَه څَما نيت د تهاينسر د تالودي بنارئ چه ته يوځو تن معتبران خپل څمونږَ له لښکرَ سره کړي چه ستا د وطن په خلقو زور زياتي و نه شي ۰ اند پال دپاره د خيرخواهئ خپلي په تلوار سره ميلمستيا لويه طياره کړله او سوداګر ئي د وطن راوبلل حکم ئي ور ته واوراوه چه اوره او غوړي تيل ماڼګه لوښي لرګي هر څه اسباب چه د بادشاه په لښکر کښ پکاريږي ويړيا ورکوي هيڅ پيسه کاسيره له چا نه مه غواړئ ۰ او دوه زرَ سواره ئي د ورور سره خدمت د بادشاه ته واستول او عريضه ئي ور ته وکښله چه زه بنده او خدمتګار يم هر څه حکم چه وي ور ته طيار يم مګر عرض م دا دي چه تهانيسر د دي وطن د خلقو د عبادت ځاي دي اوکه په دين د مسلمانانو کښ د بتانو ماتول ثواب وي نو هغه کارخو په ماتولو د نګرکوټ د بتانو کښ شوي دي اوس که بادشاه د خپلو راتللو نيها واخلي او هر کال په هغو خلقو باندِ قلنګ مقرر کړي او په خير سره بيرته وګرزي نو زه به هم په شکرانه د دي خبري چه څما سوال قبول شي پنځوس هاتيان او رنګ رنګ پيشکشئ هر کال په دلبار کښ حاضروم ۰ سلطان جواب ورکړ چه په دين د مسلمانانو کښ ثواب دا دي چه ځاي د عبادت د کفارو ځوک وران کانو نو هغه به په ورځ د قيامت ډيره نيکي ومومي او نيت څما دا دي چه بتان بالکل د هندستان

له سنهرونو نه لري کړم نو بیا څنګه له تهانیسر نه منع شم * حاصل دا دي چه دا خبر د ډیلي راجه ته ورسیده ځان يُ د مسلمانانو جنګ ته طیار کړ او هر طرف ته د هندوستان يُ قاصدان ولیکل او راجګانو ته يُ وویل چه سلطان محمود د ډیرو لښکرو سره تهانیسر ته را روان شوي دي اوس که دي زورآور سیلاب ته یو بند مضبوط و نه تړو نو زر دي چه په صحرا د دي وطن کښ بوټي د دولت د وړکي او د لوي پري نه بدِيږي نو بهتره دا دَه چه په اتفاق سره دا غوغا دفع کړو * مګر سلطان بخوا له جمع کیدو د دوي نه تهانیسر ته ورسیده او چه ښهر يُ خالي ولیده نو په آرام سره يُ لوټ کړ او ټول بتان يُ مات کړل او جګسوم يُ غزنین ته واستاوه ِ چه په لارکښ يُ واچويَ چه هر څوک پرِ خیژيي او د ښپو لاندِ يُ پایمالِوي او دومره خزانِي يُ په بتخانو کښ وموندلي چه په شمار کښ نه راځي * او له حاجي محمّد قندهارِي نه نقل دي چه په یوه بتخانه کښ د سرو یاقوتو یوټه وموندلي شوه چه په تول څلورنیم سَو مثقالَ وَه او هیچا چري داسي ټکره نه لیدلي وَه او نه آوریدلي وَه * او سلطان پس له هغي فتح ِ نه اراده د ډیلي د لاندِ کولو وکړله خو امیرانو ور ته عرض وکړ ویل يُ چه ډیلي له تلل هاله پکار دِي چه پنجاب سراسر په تصرف کښ راشي او د انندپال له خیال خمونږ زړونه خالي شي *

سلطان دغه مصلحت خوښ کړ لږ څه کم دوه لک ونيخي مربونه يُ له هغه وطن روان
کړل غزنين ته وګوزيده واېي چه د غزنين ښهريُ په دغه کال کښ د هندوستان
له ښهرونو نه شماره څکه چه هر امير له په لاس ډير ډير مربونه او ونيخي د
هندوستان ورغلي دُو ۰ او په سن څلور سو دري هجري کښ التونتاش سپه سالار
او ارسلان جاذب فتح د غرجستان وکړه او شاه سار مشهور په ابو نصر حاکم د هغه
ملک يُ ونيوه غزنين ته يُ راوست ۰ اوچه شاه سار يُ غزنين ته بيوه نو د يو غلام
حواله يُ کړ او هغه غلام په زړه کښ وويل چه مناسب دي چه يو کاغذ کور ته وکښم
چه څمونږ له راتللو نه د کور خلق خبر شي نو شاه سار ته يُ وويل چه يو خط څما
د پاره وکښته چه کور ته يُ واستوم ۰ شاه سار ډيره منع وکړه ليکن غلام نه پريښوده
ناعلاج شه قلم يُ په لاس واخست او ويُ ليکل چه اي ناکاري ناپکاري بيحيا
بدروزګاري ستا دا ګمان دي چه ګُندِ زه به دِ په حال نه خبريږم او څما مال چه په
نارواؤ کښ ګډي ما ته به ګنږه دغه نه معلوميږي ۰ وزخ په شرابو نيږدي او شپه
بردي ښندان مشغولی کور څما دِ برباد کړ او عزت م دِ ورک کړ که چرې سلامت درغلم
نو ګورم به در سره خبر به دِ واخلم ۰ چه خط يُ تمام کړ مهر يُ پرِ ولګاوه لفافه
يُ بنده کړله غلام له يُ ورکړله ۰ غلام چه کاغذ کور ته وليکه او بنځه يُ په

حال پوهه شوله هیبت واخستله وسواس ئې پیدا شه په زړه کښې ئې دا فکر وکړ چه
خښتن ته به م چا دښمنانو د دروغو تهمت جوړ کړي ږي او زه به ئې ورته نوره
کړي بیم نو د خښتن له ویرې یو خو ونښتي ئې د خان سره کړلي له کوره ووتله لاړله
چرته به یو کوټ کښې پټه شوله * او غلام چه شاه ساد غزنین ته ورساوه نو کور ته
لاړ شه خه کوري چه دروازه بنده ده او په کور کښې څوک نشته یو ساعت حیران
ودریده بیا چه دروازه ئې لرې کړله ودان کور ورته وران ښکاره شه نه ئې بي بي
ولیدله او نه ور ته خدمتګاره ښکاره شوله * غلام له ګوانډیانو نه پوښتنه وکړله
هغو ور ته د کاغذ حال ووایه غلام یو ساعت خپه ودریده فریادونه اسریلي ئې
کول او ویل ئې چه ما خو هیڅ ویلي نه دي بیا ورغي بي بي ئې راوستله او ډېر عذرونه
ئې ورته وکړل * او په اول مجلس کښې چه شاه سار ئې سلطان ته په خدمت کښې
حاضر کړ نو یارانو خوش طبعو تمام احوال د غلام سلطان ته بیان کړ * سلطان
وخندل او و ئې ویل چه هر څوک چه له اندازې نه تیري قدم ږدي او د لویو خلقو
سره بې ادبي کوي نو هم دغه ئې سزا ده * بیا سلطان هم په دغه ورځو کښې یو مکتوب
خلیفه عباسي ته چه خطاب ئې اَلْقَادِرُ بِاللهِ وُه وکښه مطلب په کښې دا وه چه
اکثر ښهرونه د خراسان څمونږ په تصرف کښې دي نو امید دي چه هغه بعضي

بعضي ښهرونه د خراسان چه ستاسو د غلامانو په لاس کښې دي هغه هم دي خلقو ته پرېږدي ژبي خليفه چه طاقت د جنګ نه لاره خواه مخواه ئې دغه خبره قبوله کړله ٭ بل وار بيا سلطان کاغذ ور وليګه او په کښې ئې کښلي وُو چه سمرقند هم ما ته پرېږده ٭ خليفه وُوِ چه پناه غوارم په خدايِ پاک سره له دي کار نه دا کار زه نه کوم او که ته ئې بغير له حکمَ ځما نيت د آخستو کوي نو دا ټول جهان به در باندِ ولړزوم ٭ سلطان په دي خبره ډير خپه شه او وئې ويل چه غواړي چه د زرګونو هاتيانو سره درشم او بادشاهي ستاسو کنډه وړه کړم او کلي ښهرونه واړه ونړوم او خاوره ئې په هاتيانو بار کړي غزنين ته راوړم ٭ قاصد دا خبره واوريدله بيا روان شه چه څو مده تيره شوله بيا راغي او کاغذ ئې راوړه ٭ سلطان کښېناست او غلامانو ورته صفونه جوړ کړل او لوي لوي هاتيان ئې په دروازه د دلبار کښې ودرول او لښکر ئې طيار کړ په دغه ساعت کښې قاصد کاغذ مهر کړي په تخت کيښو او ور ئې ويل چه اميرالمؤمنين وائي چه جواب ستا دا دي ٭ خواجه ابونصر زوزني چه امير د دفتر د خطونو وه کاغذ ئې وسپړوه په کښې ئې وليده چه اول ليکلي وُو داسي بسم الله الرّحمٰن الرّحيم بيا په بله کرخه کښې ئې دا حرفونه جدا جدا کښلي وُو په دي شان سره ال م ال م او ور پسي دا رنګ خط وه

الحمد لله رب العٰلمین والصلوٰة والسلام علیٰ رسوله محمّد و آله اجمعین * نور هیڅ نه
وُو * سلطان او نور منشیان واره حیران پاتي شول او په مطلب ئې هیڅ قدر نه
پوهیدل * بیا هر یو آیت د قرآن مجید ئې ولوست او تفسیر د هغه ئې وکوت لیکن
هیڅ مراد ئې معلوم نه شه * خواجه ابوبکر قهستاني چه لا د دومره مرتبې خاوند
نه وه زهورنیا وکړله و ئې ویل چه سلطان مهربان هاتیان د هغه وطن د ورانولو
دپاره یاد کړي وُو نو بنا ئې چه خلیفه جواب د هغي خبرې اَلَمْ تَرَ کَیْفَ فَعَلَ رَبُّكَ
بِاَصْحَابِ الْفِیْلِ لیکلي وي ــــ معنیٰ دا ده (اي نه وینې ته چه څنګه کار کړې وه رب
ستا د یارانو د هاتیانو سره) سلطان په اوریدو د دې خبرې له هیبتَ بې هوش پریوت
چه یو ساعت پس په خود شه ډیر ئې وژړل او قاصد ته ئې عذر وکړ او د ډیرو پیشکشو
سره ئې بیرته ولیږه او ابوبکر له ئې خلعت خاص ورکړ او مرتبې د امیرئ ته ئې ورساوه *
او په سن څلور سو څلور هجرې کښې سلطان لښکر ننددونې قلا ته چه په غره د
بالنات کښې ده وکښنه * او په دغه مده کښې انندپال مر شه زوئ د هغه چه نمسي
د جیپال وه او حاکم د لاهور وه طاقت د جنګ ئې نه لاره څه قدر خوانان د
جنګ ئې په ننددونه کښې پریښول او دې یوې درې ته د کشمیر لاړ شه * سلطان
هغه حصار حصار کړ او د سورې کولو او د قلا د نړولو اسباب ئې طیار کړ لیکن

هغَه خلق تنگ شول امان يُې وغوښت تاؤ يُې امانته سلامته سلطان ته وسپارله ❊ سلطان هغَه قلا په خپل تصرف کښې کړله او يو معتبر سړي يُې په کښې کښېنولو د جيپال په نمِی پسې هغَه درې د کشمير ته لاړِ شه او د جيپال نمسي له هغَه ځايَ بل خوا وزغليده ❊ سلطان په هغَه دره کښې ډير مال لوټ کړ او ډير خلق يُې د مسلمانۍ سره آشنا کړل بيا غزنين ته را وګرزيده ❊

او په سن څلور سَو شپږ هجري کښې سلطان تدبير د ملک د کشمير وکړ او چه ورغي هغَه سخته قلا د لوهکوټ يُې حصاره کړله ليکن چه موده ډيره تيره شوله او واوري زياتي ووريدلي او يخني غلبه شوله او قلا له کمک له اندازي بهر راغي نو قلا بندي يُې پرېښوله او غزنين ته بيرته روان شه ❊ او په دغه سفر کښې يُې لاړ ورکه کړله يو هسي ځايَ ته ورسيدل چه ټول صحرا له اوبو ډک وه هر خوا چه به تلل بغير له اوبو يُې څه نه ليدل او په دغه اوبو ډير سړي هلاک شول او دا اول په نظر وه چه په سفرونو د هندوستان کښې لښکر ته د سلطان ورسيده پس له څو ورځو په ډيرو چلونو او مشقتونو له هغه اوبو خلاص شول غزنين ته لاړل ❊

هم په دغه کال ابوالعباس مامون د خوارزم بادشاه سلطان ته د پاره د خور د دوستۍ کاغذ وکښنه ❊ سلطان کاغذ قبول کړ خور خپله يُې خوارزم ته وليګله ❊

انتخاب

# د تاریخِ مرصّع

تصنیف د افضل خان بنِ اشرف
خان بنِ خوشحال خان ختک

# انتخاب
## د تاریخِ مرصّع

### ذکر په بیان د غرِي وخښبي کرلانړِي راتلل له قندهارَ دَکابل و صوبي ته او دا ملک د پښاور وغیره نیول په دا وقت چه څه واقعات د نیک تدبیر شوِي دِي او بعضي توّاریخ دخپل اُلس او د خانانو د هغو اوخپل سرگذشت بیانول

نقل دي چه آخوند درویزه په خپل کتاب کښ چه تذکرة الابرار باله شِي لیکلي دِي چه شیربون نومیده د قندهار په لورِي پښتون وه دده دوه زوي وُو یو کِنْد یو زمِنْد نومیده + له کِند نه دوه زوي پیدا شول یو خښي دویم غرِي + د غرِي څلور زوي وُو یو دولت یار چه مهمند او داؤدزي دده له نسلَ دِي دویم خلیل دریم زیران څلورم چمکنِي + وایي چه څلورو وارو ورونړو یو مِن حلال

کړي يوځ کړي وَه يو تر بله ئې وويشه دا يو ورور چه چمکني نوميده دا ئې د ښوروا
له ويشَ هير کړ ښوروا ئې دده بخره ورنه کړه دي آزرده شه د دري واړو له مينځ
جدا شه + تر اوسَ پورې خني جدا دي متفرّق په هرځاي ميشت دي + زيراڼي
هم له ورونړو جدا شوي دِي د ننګنهار په تاجيک ماجيک کښ ميشت دِي + اکثر
خلق چه ترِ خبر نه دِي ورته وايِي چه تاجيک دِي امّا دوي ښه خلق دِي +
د خښِي دري زوي وُو يو مندي دويم مک دريم ترک + وايِي چه د خښِي ارتينه وَه
مرجانه نوميده چه مندي او مک ددي دَ نسَ دِي او د مرجاني خور وَه بسو نوميدهٔ
بي ديانته وه هغه هم د خښِي کړه ورنونه لکه د پښتنو دستور دي ورپسي متيزه
شوه + په هغه آوان چه دين دارِي په کښ کمه وَه له هغي نه ترک پيدا شه ترک لائِزي
د هغي اولاد دي تر اوسَ پورې په دوي کښ متيزي ډيري کيږِي امّا نوره دينداري خو
اوس لږِي + د مک يوه لوروَه ګاګِيِ نوميده خپل شپانه ته ئې واده کړه بزرکي يا زيرکي نوميدهٔ
ګکياڼي له هغي پيدا شه د مک نور اولاد ونه شه ګکياڼِي ئې بولِي او دَ مند دوه زوي
وُو يو عمر بو يوسف دا عمر ډير مرد با ديانت وه ښهرونو ته لاړ يوه ښځه ئې د هغي
زماني د ساداتو په نکاح کړه يو زوي خني پيدا شه مندړ نوميده دي هم په هغه
ملک کښ وفات شه + پس له يوه مدتَ يوسف دده ورور په طلب دده د

اهل و عیال ورغي چه را ئې ولې امّا هغي ارتيني دده سره تلل قبول نه کړه ورته ئې
وِچه سناسي رسم دي چه د ورور ارتينه او مال چه له وروَر پاتي شِي په زور ئې
غصب کوئِ د ما رضا ده چه په یوه نکاح باندِ بل نکاح په ما ثابت نه شِي لکه په
حدیث کښ راغلي دِي چه هره ښځه چه په اول نکاح باندِ اکتفا وُکا ثابته پاتي شِي
فرداي قيامت به د نورو ښځو شفاعت کا امّا دیر عهد سوګند ئې ورسره وُکړ دا دوا نه
ئې کړه ✤ او د یوسف ښځه زوي وُو یو په کښ اریا نومیده از بس چه ډیر متکبّر او ډیر
مغرور وه بادِي به ئې باله اوس ئې هم اولاد ته بادِي خیل وائِي ✤ دویم عیسیٰ دریم
موسیٰ چه د الیاس پلار وه ځلورم ملي پنځم اکو ✤ نقل دي چه په هغه آوان په
پښتنو کښ دا رسم هم وه چه ځامن به ئې په حد د بلاغت ورسیدل د پلار د مور
مال به ئې یو تر بلَ قسمت کړ و پلار مور ته به ئې هم بخره برابره ورکړه القصّه د
یوسف ځامنو چه مال سره ویشه مور ئې ورته وویل چه د ما بخره هم بیله کانړئِ ✤
هغه نور ورونړه ئې لا خاموش وو هغه بادِي کم بخت و اندام نهاني ته اشارت
وکړ چه دا داخله ✤ مور ئې ورته بد دعا وکړه چه ستا اولاد تر دیارلسو کسو زیات
مه شه تر اوس پورې ئې اولاد تر دیارلسو کسو نه زیاتیږي یو خوکس په چغر زیو کښ
شته دي ✤ د الیاس ځلور زوي وُو اول نسو بیا تاجي پلار د کدائِي دریم سالار

خلورم ممي خبنتن د عايشي چه اوس ئې عاشي زي بولي ÷ د اکو شپږ زوي وُو خلور
له يوي ارتيني وُو چه ګوهره نوميدَه اول خواجو دويم بازيد دريم ابا خلورم شاوک او
دوه ئې له بلي ارتيني وُو اول حليم دويم اتمان ÷ د موليٰ خلور زوي وُو دوه د يوي
ارتيني چه وتئ نوميدَه اول دولت دويم چغر دوه ئې له بلي ارتيني وُو چه نورئ نوميدَه
بو ابا دويم ايسوري ÷ او د عيسیٰ يوولس زوي وُو ÷ يوه ورځ د آسونو ګله د مندړ
مغلو په تاراج بوتله عيسیٰ له نه زويو سره پسي سور شه تر اولسَ وراندِ پسي
ورغي واړه دَ مغلو له لاسَ شهيد شول ÷ مسله دَه چه په خپل مال پسي ومري
شهيد شي ÷ له هغو جملهٔ دوه زوي دده پاتي شول يو حسن دويم يعقوب ÷ چه
عيسیٰ مړ شه ارتينه ئې حامله پاتي وَه زوي وشه نوم ئې اکا کښيښ ÷ د مندړ خلور
زوي وُو اول مامو دويم خدر دريم رجړ خلورم مندو ÷ القصه پښتنو ملک دَ
قندهار يو تر بلَ قسمت کړي وه حصه د ترينو په مينځ کښ د کند او د زمند واقع
شوي وَه يو تر بلَ دَ دواړو ورونو حمايت نه رسيده په استوګه خښي تر غرِي و ترين
نه نژدي وه چه بخره ئې د ارغسان واله وَه او هغه واله نژدي و ترينوته وه ÷ دَ
ترين او د خښي تر مينځ عداوت پيدا شه ترين پرِ غالب شه بعضي خښي ئې مړه کړه
بعضي ئې بې ځاي کړه ÷ هيڅ زمند او غزي په حمايت د دوي و نه رسيده آخر رجوع

ئې وغرِي ته وکړِ يوه زمکه ئي ورکړه چه نابوده وَه بود ئې هيڅ نه وه + وايي چه دَ
قندهار په زمکه چه وقت د بهار شِي بارانونه ووري انواع سبزه زار او علفزار پرېاندِ
وشِي چه ګرمې داهاره پرِ ښکاره شِي هغه سابه وابنه په زمکه وډيږي تر کالَ پوري
هغه ګيا په زمکه ريژيدلي وِي مال موبشِي ئې خوري ساعت پرِ تيروِي او که په دا
ميان کښ د پشکال باران پرِ وشِي ګيا واړه سيلاب يوسِي و مال موښي ته ئې
سختِي پيښه شِي + قضا هغه کال باران دَ پشکال وشه د غرِي مال ته سختِي
پيښه شوه + هغه زمکه چه ئې وخښي ورکړِي وَه په زور په جنګ په جدل
ئې له خښي رانيوه خښي له هغه ځايَ بيځايَ شه په يوه بل ځاي راغي پرِيشت شه
چه هغه ځاي ته کارون تنګي وايي + بيا هسي په حوادثو راروان شول و کابل ته
راغلل اتمانخيل د تک د کومل له لوريَ د خښي سره يو ځاي راغي او هميشه به
د خښِي سره په حمايت په مدد مل وه تر اوسَ پوري + او مهمندزِي له زمندونه
دِي په څه سبب له خپلو ورونړو آزرده شه له خښي سره روان شه تر اوسَ
پوري روزګار ئې د خښِي سره دي امّا خښي د ده سره نيکي نه کا +

## راتلل د خښي و پښاور ته له کابلَ په حادثاتو

نقل دي چه خوکالَ خښِي به فراغت په کابل تيرکړه دولت مند شول مال ئې

دېر شه اولاد ئې دېر شه + دا دستور دي چه په بنه ملک کښې دولت حاصلېږي
واېي چه په هغه آوان کابل د میرزا الغ بیگ په تصرف کښې وه چه د میرزا امیر
تیمور له اولادَ وه په سن اته سوَ یوولس شاه‌رخ سلطان چه د امیر تیمور زوي
وه په هرات کښې د خراسان بادشاهي کوله + میرزاخلیل نمسي د امیر تیمور په
ځاي د میران‌شاه چه زوي د امیر تیمور وه په سمرقند کښې د ما وراء‌النهر بادشاهي
کوله د خپلو امرایانو دِ لاسَ په سمرقند کښې په قید شه + هرکاه چه شاه‌رخ په
هرات کښې دا واوریده لښکر ئې وکړ په سمرقند داخل شه+ میرزاخلیل چه د
امرایانو دِ لاسَ په قلعه شاه‌رخیه کښې په قید وه له سختیِ ئې دا غزل شاه‌رخ سلطان
ته وکوېښ چه سرئې دا دي -یَاوَاهِبَ الْعَطِیَّةِ یَا مُقْضِیَ الْمُرَادِ- ما طاقتِ فراق ندارم
زین زیاد - شاه‌رخ سلطان چه دده تره وه له حبسَ ئې خلاص کړ ورسره ئې
هرات ته بوت دېره مهربانِي ئې پرِ وکړه او سلطنت اوحکومت ئې د تختِ سمرقند
په خلف الصدق د امیرزاده الغ بیگ وسپاره روان شه + چه په جیحون پورې
وت خداداد جسته بردي بیگ چه میرزا خلیل ئې په قید کړي وه له سمرقندَ
واړِي شول+ شاه‌رخ سلطان میرزا چه سمرقند دده په تصرّف کښې کړي وه آخوند
درویزه نوم د هغه شاه‌زاده علِي‌قلِي کښلي دي شاید زوي د میرزا الغ دي+دا مقدمه

څوا د بابر بادشاه د راتلو نه ولايت فرغانه نه وه چه بابر بادشاه له ذوالنون ارغون له زوي چه مقيم ارغون نوميده واخست او په چل تصرف ئې راوړ پښتانه دا ملک د پښاور واړه نيولي وه څاي په څاي پر مېشت وه هر کله چه درست څښتي وکابل ته راغي يو مدت ئې په کابل تير شه مال مولېشي دولت فراغت ئې روزي شه او په دولت په فراغت سره اولاد ډېر ډېر خصوصاً يوسفزي او مندړ ډېر شه فساد ئې آغاز کړ د کابل عالم به ئې ډېر ډېر آزاراوه مالونه به ئې راتيول نامناسب کارونه به ئې کول نور پښتانه به ئې په نظر کښ نه راوړل او له شاه زاد ميرزا علي قلي بيگ به ئې ډېره نه کړه هيڅ حجاب به ئې څښتي نه کاوه بلکه د ده سړي به ئې هم آزارول د ده په ديوان خانه کښ به کښيناستيدل نالايقي خبري به ئې کړي ازراه ضرور ئې مرزا په دا پله راوست چه د دوي سره جنگ وجدل او دښمني وکا يو څو ئې څښتي مړه کړل بعضي ئې څښتي تاخت کړه الغصه چه پښتانه فرار شول د کابل د عزوبو په درو ننول په هذه آوان د پښتنو دري شيخان نامداروو دوه وروڼه وو يو مداد دويم مدد دا دواړه د عيسي زي د قبيلي نه وو بل شيخ عثمان مولوي زي وه دا درست ألس مداد او مدد ته تول شه چه تاسي مونږ له علم غيب خبر کانړئ چه د ألس به څه حال شي او تاسو له دي واقعي چه تېرد شوه ولي مونږ خبر نه کړو چه فکر او سرانجام مو د چل کار کړي

وي چه موږ ته دا هومره زیان پیښ مه وي * دوي ووارد ور ته وویل چه اول تاسو
شیخ عثمان مولیزي مړ کانږئ پس له هغه به موږ جواب وکړو چه همیشه ئې له اُلس
انعام او اکرام مونده ولي اُلس ئې له دي واقعي نه نه خبراوه یا دا اُلس نذر نیاز ده ته
ور وانړئ یا موږ ته * آخر د شیخ عثمان په مرګ خیر شول * شیخ عثمان ور ته وُوِ
چه بخوا هم له دي واقعي آګاه وم امّا لاس مِ د خداي په کړه نه رسیده اوس له دي
به هم تاسو خبر کړم که مانه وژنئ * چه له مرګ ئې خلاصي بیامونده ور ته ئې وویل چه
ستاسو به له میرزا سره عظیم جنګ وشي امّا فتح به ستاسو وي * مداد او مداد
هم دا رنګ ور ته وُوِ امّا د پیادهٔ سردار دِ له موږ نه یو زیي * پس د جنګ په ورځ
د پیادهٔ سردار هم له دوي ده هم هغه هسي وشول * پس له هغه به پښتانه له
هغه غره راتلل رعایا به ئې تاخت تاراج کړل مرزا پله چاره بي له صلح و نه لیده سړي
ئې نز میان کړه را وُبئ بلل طعامونه او سروپاونه ئې ورکړه ور ته ئې وویل چه دِ ماکوږ
هم ستاسو خپل دي * پښتانه چه په عقل کښ سازوار دِي څکه ډیر نفساني دي په
لږ سود مقصود ډیر بهبود تر شاکوي * ورځ په ورځ به کډ خدایانو د اُلس مرزا ته
آمد و رفت کاوه یوه ورځ انه تړوکس ورغلل هڅکي بي وسلي یو محمود د محمّد چخرزي
زوي یوه چړوکئ په چل ازار کښ دیي وه چه ور ننوتل د میرزا پدنیتي ئې ولیده *

هغه دي نورو ونه وُوِ چه که وايئِ نو زه به مرزا مړ کړم * هغو نورو منع کړ چه حق
نمک ساتلي بويه شايد د موږ سره بد نه کا * دا چغلي جنګا ګکياني کړي وَه چه دا
هونبره ډير به پرخاي بيا نه مومي او له دوي نه به په نيکئِ خلاص نه شی دا وخت
غنيمت وګڼڼه او واړه قتل کړه * واړه ئې وتړل يو يو ئې وژي په هغه وخت د دوي
د لويو ملکانو سلطان شاه وَه د مرزا په خدمت ئې عرض وکړ چه دوه التماس آرزو
لوم که قبول شي * مرزا وُوِ چه قبول دي * اول ئې دا وُوِ چه وراره خما ملک احمد
له دي قيدَ خلاص شي بادشاه ئې خون معاف کا بل دِ د اُلس بند د اطفال دِ نه شي
بلکه پريږدي هر لورته چه درومي * مرزا قبول کړه مرزا ورته وُوِ چه خما کمان دا وَه
چه ته به خپل سر غواړي با به سل دوه سَرکَس خوانان نور غواړي * ده ورته وُوِ چه
نو دي واړه احمد بهتر دي او چه دا هونبره عزيزان م مړي زه به خپل سر په خو
خلاصوم نو دي واړه اول زه بنه يم * لکه کمان په ملک احمد باندِ وه هسي کارونه
د ده د لاسَ وشول * القصه پس له هغه باقي مانده اُلس د يوسفزيو به معهٔ توابع
ولواحق وننګهار نه راغي تيه د ترک لانزِي په لمغان کښ متوطنه شوه يو مدت په دا
تير شه د يوسفزيو د محمدزيو تر ميانَ عداوت پيدا شه په موضع حصارک ئې يو تر
بلَ عظيم جنګ وکړ آخر الامر فتح د يوسفزيو شوه * آخر پس له يوه مدتَ يوسفزي

له ننګهار کوچ وکړ ننګهار يې و محمدزيو ته پرېښي او تپه د ګلبانۍ په باسول کښې پاتو
شوه يوسفزيي بعضي عالم وايي چه باجوړ لوه راغلل يو حد دوي د باجوړ وينو لړ ډېر
جنګ يې د باجوړ د عالم سره وکړ يا يې باجوړ خوښ نه شه يا يې توان نه لېده ځني
رجاروتل ٭ ملکان يې راغلل د دلازاکو سره يې په سفيد سنګ جرګه وکړه زمکه يې ځني
وغوښته دلازاکو زمکه ورکړه پس له مدت د يوسفزيو د دلازاکو سره عداوت وشه لکه
پخوانۍ بيان شوي دي ٭ اما په قول د آخوند درويزه يو شان روايت دادي چه له دلازاکو
سره يې جنګ وکړ ډېر يوسفزيي ومړل له هغه نه د يوسفزيو اُلس د تحترو او د
ګلمانيو په غرو راغلل له هغه نه يې د دلازاکو سره صلح وکړه په حدود د پېښاور ننوتل
دلازاکو د دوی سره ډېر لطف او احسان وکړ ٭ بعضي عالم وايي چه د خيبر په لار پېښاور
ته را ننوتل جوي برېر يې له ګلمانيو وغوښت ګلمانيو د دلازاکو په قوت منع کړه چه
د دلازاکو الفت او برادري د ګلمانيو سره وه پخواني پېښاور بېولي وه لکه ذکر يې
شوي دي ٭ بيا د ګلمانيو او د اُلس د يوسفزيو سره عداوت وشه سره يې جنګ
وکړ فتح يوسفزيو وکړه کوچ يې وکړ دوآبي ته راغي له دلازاکو نه جدا شه بعضي دلازاکو
د يوسفزيو سره عداوت واخست په هغه سبب طاقت يې د پېښاور د استوګي نه وه ٭
پس د يوه مدت يې د هشنغر د ګلمانيو سره عداوت وشه سره يې جنګ وکړ فتح

یوسف زیو بیامونده خلو نام شلماني چه سردار د شلمانیو وه هغه یُ مرکړ باقي اُلس یُ له هشنغرَ وشاړه وسواد ته لاړل د سواد سلطان دوي لره ځاي ورکړ الله ډند باندِ یُ واچول * نقل دي له آخوند درویزه چه له یوه چغرزي نه یُ نقل کړي دي چه دخلو شلماني په مرګ زه حاضروم چه سر یُ د ده پري کړ هونبره ډیره بزه یُ ځبنلي وَه چه د مريځ تر ویئو نه یُ بزه ډیره را نویه شوه ـ نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ ذَالِکَ ـ (یعني پناه غواړم په خداي سره له دغه کارَ) یو مدت اُلس د یوسف زیو په هشنغر کبس متوطن شه *

# راتلل د غوریه خیلو له قندهارَ

نقل کا چه په یوه سبب یا د هزارهُ له میرځيِ تنګ شول یا د مغلو له بديِِ د قندهار له ملکَ متفرقه تپه تپه را رواني وي په کابل په ننګهار یُ مکان ونیوه چه جمعیت یُ وشه خانه کوچ پینباور لره راغله * په پینباور باندِ دلازاک ده مناقشه یُ سره وشوه د سلطانپوري په کلِي چه اوس یُ هم عالم د جنګ وَرَيْ بولي جنګ سره وکړ دلازاکو شکست بیاموند څه په تیغ مړ شه بعضي ډیر عالم د هزارخانيِ نالي غرق کړ چه تبزندیځ کنده یُ بولي * د جنګ په وخت یوه پرچه د اوریځي را بنکاره شوه باران په سرحد د نالي وشه ناله راغله او که نه ځيل قوت د اوبو د هغي نالي

نشته ٭ هسي نقل کا چه هغه زمان باران په هیڅ ځاي نه وه مګر په سرحد د هغي ناﻟﻲ سُبْحَانَ اللّٰهِ (یعني پاکي ده خداي لره) ٭

چه دِ خوښ نني ماتول د دښمنانو هاتي‌وان او هاتیان وژني په مرغانو

فتح له جانبَ د ده وَه مدد له طرفَ د ده ٭ ویلي دي حق تعالی - وَمَا رَمَیْتَ اِذْ رَمَیْتَ وَلٰکِنَّ اللّٰهَ رَمَيٰ (یعني نه دي ویشتلي تا په هغه وخت کښ چه ویشتلي دِ دي لیکن خداي ویشتلي دي) ٭ دلازاک له پېښاورَ بي‌پایه شه بیاد یوسف‌زیو تر سپینَدَ پورِ شه په لنګرکوټ په سمه په کلپانيِ ئي وارول ٭ یو مدت په دا تېر شه بیا د یوسف‌زیو د دلازاکو سره مېرځي شوه یوسف زي په درست ځښني وګرزیده ور سره ئي مل کړ د دلازاکو سره ډېر جنګونه وشول له کلپانيِ ئي دلازاک بي‌پایه کړ ٭ نقل دي له آخوند درویزه چه د دلازاک په هغه آوان په مېره د لنګرکوټ استوګه وَه د یوسف‌زیو په هشنغر وَه او په دا سبب چه دلازاکو د لنګرکوټ ګِرد نواحي مېره نیولي وَه چه په د یوسف زیو مال مویشي و مېري ته په چراګاه ورغي تاخت و تاراج به ئي کړ که ځوک به ئي په سود په سودا ورغي هم به ئي آزاروه همیشه به د دلازاکو د لاس په تنګ وه ٭ ملک احمد مصلحت وکړ چه بویه رجوع د ځښني ته وکړو اګر چه که د مهمندزیو سره یو تر بله ئي دښمني وُه امّا چه دا نتواني ورغلل شرط ئي د برادريِ د ملګیريِ ور

سره په خاي راوړه ۰ امّا ګګیانیو وویل چه ملک د دوآبي خما مهمندزیو وویل چه ملک
د هشنغر خما ۰ یو تزک لانړي ور سره مدګیږي و نه کړه ولي اتمان خیل ور سره ژر د
دلازاک سره ئې په دا جنګونو ښه تردد وکړ ۰ وایي چه اتمان خیلو د غواړ میښو خرمنې
سازي کړېي وې د جنګ په وخت به ئې په مخ کښ وړي چه غشیو به پرِ کار نه کاوه
تمام خښي د کړې و سره را ږکیښې د ګدر په رود ئې واړول بله درخ دلازاک د لنګرکوټ
له لوري په قصد د جنګ را دوتل جنګ ئې سره یو تر بله وکړ د دلازاکو د لوریه
به ډیر د غشیو ګذارونه کیدل ډیر خښي ومړ ۰ آخر په جنګ د تورو سره ورغلل
اول څوک چه د ګدر په رود پورِ شه زوي د زنګي دلازاک مړ کړ بشیر زوي د علي
اسمعیل زي وه ۰ پس د هغه د یوسفزیو قصد د سوات د آخستو وشه پس د
یوه مدت ملک احمد او شیخ ملي مصلحت دا وکړ چه د سوات په لوري خانه کوچ کوچ
کړي یوبه ۰ واړو په اتفاق سره کوچ وکړ د شاه کوټ د غاړېي په خوا کښ ئې واړول یو
ثو ورځي ئې هغه خاي تیري کړې سواتیو به شپ و روز د هغه غاړېي څوکيږ درله او له
نورو غافل شول ۰ یوه شپه یوسفزیو سره مصلحت وکړ پنځو ته ئې وویل چه سنډي
آغازي کړېږ او په سندرو کښ به ئې د چلو مردانو صفت کاوه او د سواتیو به ئې
ذم کاوه په دا مضمون چه سواتیو خبردار شيږ صبا به در سره جنګ ږي ۰ سواتي

وپوهیدل چه صیا به دوي هم په دا غاړبي جنګ راوړي امّا بقیّه لښکر چه يې څه وه
هغه يې هم و شاه‌کوت غاړبي ته جمع کړ + یوسف‌زیو په شپه یلغر وکړ د ملکنډ
په غاړبي و سوات ته واوښتل + هره ورځ به يې په سوات کښ جنګ کاوه په مخ کښ
ملک به يې لاندې کاوه تلل تمام په دولس کالَ کښ درست سوات يې ونیو د تلاش
د باجوړ په جنګ و جدل مشغول شول تر هغه ملک يې هم ونیو + نقل دي چه
د تالاش په جنګ دکاټ‌کلي په کلي برمزید نومیده مندړوه آس يې په دښمن وزغلاوه
دولس نیم ګزه يې تر کندي تړپ وکړ دښمن يې په نیزه وواهه مړ يې کړ + پس له هغه
بنه ملکونه د یوسف‌زیو په لاس کښېوتل په فراغت په آرام يې ساعت په کښ تېراوه +
اګرچه عالمان په کښ کم وُو په هر حال يې په متابعت بنوي کښ ګذران کاوه دوي
هم الله تعالی بنه سائل او بل ملکان سرداران د دوي د بادشاهانو د دیوان‌خانې
منع ته وُو آمد ورفت به يې کاوه + لکه ملک احمدٌ به اکثر له سوات و کابل ته ورغي
هره خدمتګارې به يې د بادشاه په ځاي راوړه تر هغه پوري چه نوبت د خانۍ په خان
کجو راغي بیا د یوسف‌زیو د غوریه‌خیلو سره په شیخ پتور باندې عظیم جنګ واقع شه +
نقل دي چه دولس زرَ سواره د غوریه‌خیلو په هغه آوان کښ وُو نیرسو سواره
ابلق سواریو د خلیلو په تپه کښي وُو په دا جنګ کښ اکثر پرېوتل + نقل دي له آخوند

درویزه چه د یو سواره د آس په زیربند بانډې په هغه جنګ کښې دولس غرِښې لک رُو د خلیلو ټپه په غوریه خیلو کښې له هغې ورځې کمرتونه پاتو شوه ✦ وایې چه اکثر ومړل او بعضې کورونه هسې خالې شول چه ښځو یې مړیونه په سرو ونیول یو نیم چه څوک د غوریه خیلو ژوندې د یوسفزیو په لاس کښېوت یوسفزیو د نامه دپاره په برغولې خرڅ کړ پس له هغه غرور او نخوت د یوسفزیو دیر شه دېښنه مذهبونه مخالف په کښې پیدا شول څوک د ملنګانو سره عیسائې شول څوک په مذهب د پیر روښان شول چه پیر تاریک یې بولي ✦

## ذکر په بیان د خیلو انسابو او احوال د خیل اُلس چه له یوه ځایَ بل ځاي ته په سبب د حوادثو د روزګار نقل کړي دي او هر چه په دا مینځ کښې واقعې شوې دِي ✦

د خان علیین مکان خوشحال خان نقل دي چه یُې په بیاض کښې په خپل دستخط کښلي دِي چه اُلس د ختک داخل د اُلس کرلاڼي دي تر کرلان پورې او څمونږ تر اولادَ پورې شل پیړیُ رښي ✦ افضل خان د اشرف خان د خوشحال خان د شهباز خان د یحیی خان د ملک اکوړي اکوړي د درویش محمّد چه مشهور په چنجو دي چنجو د تمن تمن د حسن حسن د شیخ علي شیخ علي د عطا عطا د بېټي بېټي

د اتو اتو د برکویت برکویت د تري تري د تورمان تورمان د لقمان چه مشهور په ختک دي لقمان د ککي ککي د کرلان کرلان زوي د هوني دي هوني داخل په اولاد د سربن دي چه له اولاده د شرکبون دي دا قصه طول لري امّا مجمل او څه لابدي کښلي شي ٭ وايي چه په زمکه د ایلاق او د قشلاق کرلان له مرزا تولد شه سبب د واقعي و احشامات ته روان شول دبي يي هیر شه هرکاه چه ور یاد شه ور سر چه ورور د هوني وه په طلب د وراره وچاروت بيا يي موند يو ديک هم هورته د دوي نه پاتو شوي وه کرلان يي په دیک کښ واچاوه دیک يي په سر واخست و احشامات ته يي راوړ ٭ دوړ خپل زوي نه وه و هوني ته يي ووِ ما دا ستا زوي په ډير مشقت تر دا ځايَ راوړ ته يي مه آخله زه به يي پرورش کوم دا دیک ته واخله ٭ هوني راضي شه هرکاه چه عوض معاوضه يي په دیک وکړه او پښتانه دیک ته کړهي وايي دي په سبب د کړهي مسما په کرلاني شه ٭ هرکاه چه عاقل و بالغ شه ورمړ لور په نکاح ورکړه اولاد يي ډير شه غو ګروه خلق دي واړه منسوب په کرلاني دي انشاء الله (یعني که رضا وشي د خداي) شرح د دي احوال به په خپل محل راشي ٭ اما په زعم د دلازاکو چه په کرلاني کښ دوي لوي اُلس دي دا رنګ دي چه دوي کرلان ته سید حسيني زايي په دا ترتیب چه کرلان د سید قاف سید قاف د سید رجال سید رجال د سید خاتم سید خاتم د سید

اسمعیل

اسمعیل سید اسمعیل د امام جعفر صادق امام جعفر صادق د امام محمدٌ باقر
امام محمدٌ باقر د امام زین العابدین امام زین العابدین د امام حسین امام حسین حضرت
علي کَرَّمَ اللهُ وَجْهَهُ (یعني بزرګ دِ کړي خدای مخ د ده) + هرګاه چه اُلس د دلازاکو ارشد
په اولاد کښ د کرلان دي لر خه به يُ له انسابَ په دې محل کښ وکښل شي نسب
د دې قوم په برهان ورځي د کرلان دوه خامن وُو یو کودي دریم ککي + برهان او ورک
دواړه خامن د کودي دِي ورک زي او دلازاک دواړه په اولاد د کوړي ورځي دلازاک دوه
طابني دِي لوري او یعقوب اُلس د لوري زیات وه اُلس د لوړي دري تپي کسیرزي
عمرخیل احمدخیل وتک زي شجره هم داخل په لوړي دي + د یعقوب دوه خامن وُو
ذکریا او اما حیدر او سني حسیني دواړه داخل په اماذي سیصده درته راپي + د
ذکریا څلور خامن وُو یسین مندي سرتي ماني له هر یو نه جدا جدا اُلس پیدا شه
یسین خیل مندي زي ذکر به د ورک زي په ځل محل کښ راشي + د ککي څلور خامن
وُو لقمان اتمان عثمان جدران دا څلورواړه اُلسَ په یوه له خامنو د ککي
منسوب دِي + اتمان او عثمان له یوي مورَ دِي او لقمان له بلي مورَ دي امّا
دري واړه له یوه پلارَ دِي او جدران تره د دي دري واړو ده اُلس د اتمان خیل چه
په سوات باجوړ ارهنګ برهنګ میشته ږي له نسلَ د اتمان دي + او اُلس د افریدي

چه په تيراه او باړه او خيبر استوګه لري له اولادَ د عثمان دي * او اُلس د ځنګ
چه په سرحد د يوسفزيي تر عيسيٰ خيلو پوري په غاړي د آبِ سيند پراته دِي له
نسبَ د لقمان دي * چوتره او لواغر او تل ديتو او کربوغه او کرکره دا وطن د ددي دي *
وايي چه اسم د لقمان په دا سبب په ختک شهرت بيامونډ چه لقمان او اتمان
او عثمان او جدران ځلورواړه بنکار ته لاړل ددي ځلور ځونه له تبيلي د افغان صحرا
ته وتلي وي يو د بله پيش شول دوي دُوِ چه راشيُ په ځلورواړه د ځلورواړو هسک
واچُوو دا لوي بنکار دي *. لقمان په کښ مشر وه په هسک راضي نه شه ويي ويل
چه اول به زه يوه په غوره واخلم په نورو دوي‌واړه هسک واچويُ هم هغه رنګ ئي
وکړل لقمان په ځلورواړه کښ چه په ښه پوشاک آراسته وَه هغه په کښ ونيوه
اما چه ئي وليدَه حسن ئي موافق د لباس نه وه *

په پټ مخ په ښه جامه ئي ځوان خطا شه     چه پرده ئي کړه تره پورته پيښ يې نيا شه

هغه نوري په بنايست په ښايئ تر دي بهتري وي نورو ورونړو ئي هسک پر وکړ
موافق د هسک ئي خپلي کړي *. هرکاه چه احوال د لقمان ور ته معلوم شه په خندا
خندا ئي دُوِ لقمان په ختي لاړ * مثل دي د پښتنو چه څوک په يوه سبب درماته
شي وايي چه په ختي لاړ په دا سبب نوم د لقمان ختک شه * او عثمان ته په

دا سبب افریدي وائي چه مسلمانه د ده کړه راغلل دي ډیر حقیر او کنجي او پریشان ده وخت د ژمي وه دوي له سردیٔ یو د بل نیژدي ناست وُو مسلمنو تر پښتنه وکړه چه دا څوک دي ٭ دوي وُو دا هم آفریده دي یعني خلقت د پروردګار په دا سبب نوم د عثمان آفریدي شه ٭ له نسلَ د هغو څلورووارو جونړ اولاد د لقمان او عیر ډیر شه هغه جل چه لقمان خیل خان ته عزره کره او نوم يُ د خټک د دي په سبب بیامونه وائي چه نوم يُ سباکه وه رنګ يُ تور وه توي هیکله هوبنیاره وَه دده فرزندان د لقمان تر پیدا شول یو تورمان بل بولاق تورمان د پلار په رنګ وه او بولاق سیاه فام وه په رنګ د مور په څای د پلار تورمان کښیناست له ده دوه څامن پیدا شول یو تري بل ترکي په میان د دیو دوارو وروڼړو تري نابل شه نوم يُ د پلار ژندي کړ اولاد د تورمان واړه دده په نامه نومړل ږشي ٭ د تري دوه څامن وشول برکویت او امیر د برکویت دري څامن شول اسمیل او امیر او اتو ٭ او د ترکي چه زوي د تورمان وه دوه څامن تولد شول ایسو او یوسف ٭ او په میان د تري د اولاد اولاد د اتو او د امیري ډیر شه او اولاد د زجز په میري ورڅي ٭ او د اتو چه زوي د برکویت دي دده څامن پیدا شول بیتي او مهمند او د بیتي دوه څامن دي هوتي او چیني ٭ او د هوتي څلور فرزندان دي فتح او شیخ علي او کمیل او مزي ٭ د شیخ علي زوي حسن دي د حسن څلور څامن تولد شول میم او محمود او

کریم او نمن ۰ د نمن اته ځامن ہيدا شول درويش محمّد چه په ښخو مشهور دي بارک مت‌دا ددي ناصر شاهد او شيخ احمد علي او خواجي ۰ ښخو ته حق تعالي پنځه ځامن ورکړل يو ملک آکو او ښجوري او ميرداد او متري دا څلورواړه له يوي مورَ دي چه مور د دوي اورياخيله وَه پنځم غازي خان مور ئې بنګښنه وَه ۰ ملک آکو ته حق تعالي اته فرزندان کرامت کړه يحيی خان چه له مورَ کُښي وه او مور ئې ميتزه‌خيله وَه نوم ئې تاروکه وه ۰ بل نظام هم له مورَ کُښي وه مور ئې بولاقَ وَه نندرکه نوميدَه ۰ بل يوسف‌خان هم له مورَ کُښي وه نوم ئې د مور دردانه وه له اُلسَ د غوريه‌خيلو له طرفَ د مهمندو وَه ۰ بل تاتار خان چه مور ئې ام‌الولده وَه ۰ بل خضر او عبدالغفور چه غفور بيګ ورته وايي دواړه له يوي مورَ دُو مور د دوي هم ام‌الولده وَه ښخو نوميدَه ۰ بل طاؤس خان چه مور ئې پائي نوميدَه چيني وَه ۰ بل مصري چه مور ئې څلوزيُ وَه پس له فوتَ د ملک آکو چه ملک آکو او يوسف خان د بولاقو د لاسَ شهيد شول يحيی خان په ځاي د پلار په اتفاق د ټري د اُلس کښيناست ۰ او نظام په حيات د پلار په ځوانيُ مړ وه ۰ او يوسف خان چه نوي زاده کړي وه يو لور ئې وَه فاطمه نوميدَه ۰ يوسف خان دير لهوَر وکړ ځان ئې پلار ته ورساوه امّا چه بخت ئې باړي و نه کړ کوښښ ئې فايده ونه کړه د پلار سره ئې شربت د شهادت وڅيښ مذکور به ئې په خپل محل

راشي ؛ یحیٰ خان له کثرانو دروترو سره چه هیڅ یو لا بلوغت ته رسیدلي نه وه په قصاص ئې د پلار ملا وتړله په مدد اُلس ئې رڼا ورځ په دښمنانو توره شپه کړه انتقام ئې د پلار واخست دښمنان ئې نیست نابود کړه ؛

چه توانیږي دښمن وژنه په تلوار فرصت وبخښي له خاطرَ گرد غبار

یحيٰ خان ته حق تعالي پورلس ځامن عنایت کړه اول شهباز خان چه دا ئې تاریخ د تولد دي ؛

شهباز خان د یحیٰي خان ښکلي فرزند وه په جنګ کښ د رستم هسي څرګند

چه تاریخ د زیږیدو د ده م وغوښت عقل وِ چه شهباز خان اجل بلند

سن د هجرت پوره زر وه ؛

بهادر خان عالم خان له یوي مورَ وُو تذلیفه نومیده اسمعیل‌خیله وَه ؛ او آدم خان له مورَ یکه وه مور ئې مهمندیۍ وَه ؛ دافروز خان مور کهترا وَه نیک زنه نومیده له یوسف خانَ کُنده پاتو وَه یحیٰي خان په نکاح کړه ؛ او شریف خان او جلال خان چه مور ئې بولاقه وَه لور د نازو خان وَه چه کشنده د ملک اکو وه په بند کښیوته نوم ئې خانوه ؛ او محمّد خان او شادِي خان مور ئې ام الولده وَه رانِئ نومیده ؛ او عبدالله خان او حکیم خان مور د دوي پیرخیله نه اولادَ د شاه اسمعیل نغرِي وَه پیرخیله به ئې

ورته دي * د يحيى خان سوا له دبو ځامنو اته فرزندان نور وو په طفوليت مړه شول *
پس له شهادت د يحيى خان شهباز خان قايم مقام په ځاي د پلار شه د شهباز خان
څلور ځامن لري شول يو خان عليين مكان چه يې تاريخ د ځپل ولادت په فارسي
په پښتو پخپله ويلي دي چه د فارسي ترجمه دا ده *

په دويمه خور كښې راغي خوشحال خان | چه نصيب يې شه مكان په دي جهان
له هاتف يې تاريخ هسې معلوم شه | چه دي خير د عالميانو دغه ځوان

دا تاريخ يې په پښتو دي

د هجرت زر دوه ويشت سن وه | چه زه راغلم په جهان

بل جميل بيگ چه سكه ورور د خان عليين مكان وه مور د دوي څلوزيږ وه بل
شمشير چه مور يې اميره وه بل ميرباز چه مور يې مهمندزيږ د نوښهر
لور د ملك بادي وه پس له شهادت د شهباز خان نوبت د سرداريږ په
خان عليين مكان راغي *

## ذكر د خټك د مكان چه له كومه راغلي دي او كوم كوم ځاي يې سكونت او توطن نيولي او تخميناً حساب يې د كورونو

اول سكونت د خټك په غره د شمال وه چه وطن د وزير دي * له هغه نه يې

نقل و بنو ته وکړ له هوتي او منګلي سره آسنیده ✦ هرګاه چه اُلس د هوتي او منګلي له
عداوتَ د شنتیک او کیږي اخراج شه هندوستان ته لاړل خټک د شنتیک سره سکونت
کاوه واله د صددرون د خټک په تصرف وَه ✦ پس له هغه په سبب د عداوت په لور د
لواغره د جونو غره او دَ تیري او کربوغي او شیشم او چوتري او الاچي او شکردري لره راغلل
تر بیلابَ پورې ملک يُ تر خانَ لاندِ کړ ✦ شیرخان سوریا خیل او تیه د ببرو و
سوبیالي ته راغلل پس له یوه مدتَ آواز د شیر خان ورته را ورسیده چه وسیع ملک
يُ په لاس کښ ✦ انوخیلو هم بیی کوچ وکړ چنجو هم د کربوغي کوچ وکړ په تیغ تیګي يُ
واروِل رفته رفته انوخیل دلته راغلل ✦ نقل دي چه کوهاټ تر ریسيءِ پورې ا ملک د
ورک زیو وه بنګښ پرِ دپاسَ راغي د ورک زي سره يُ جنګونه وکړه خټک هم د ورک زیو
سره آزرده کِي وَه رفاقت يُ د بنګښ وکړ تر کوهاټَ پورې له دا ملکَ يُ ورک زیي پاشاوه
بنګښو ونیوه ریسيءِ پټیاله زیره تر تورَچیرَ بورَچیرَ پورې دا ملک خټک ونیوه ✦
پټیه خیل په کربوغه میشت وه د کربوغي نه ملک اکو د عزیزانو نه آزرده شه وخوږي ته
راغي په خوږه باندِ ماندوري میشته وُو ملک اکو میشته په کوازدره وکړه ✦ بیا ملک چاني
چه په هغه وخت سردار د پټیه خیلو وه عزیزانو پرِ عرض وکړ چه ملک اکو دِ په ناحق
آزرده کړ بویه چه بیخلا يُ کړي راتي ولي ✦ دي بیي راغي ملک اکو ور سره نه ته د ملک

جاړتي هم دا ملک خوښ شه چه بیارته ورغي د درسمند عالم به هم په دوي بانډ زور زیاتي کاوه + فکر ئې وکړ چه که زه دا اُلس له دي ځایَ بیاېم وطن خوږ دي خوک به را سره لاړ نه ړشي د بنګښ سره بړ بدړي وکړم چه دا عالم واړه را سره خانه کوچ روان ړشي + د درسمند په بنګار بنه بنه عالم را وتلي ړو په طریقِ معهود د دوي وکلي ته راغلل واړه ئې قتل کړه نور ئې له هغه ځايَ کوچ وکړ په شکردره ئې وارول + د ماغ آوان پېړ خبر شول ملاحظه ئې ځني وکړه چه د مونږ ملک به ولښي تاخت ئې پر وکړ طرفین ئې سره جنګ وکړ ډېر ومړل له هغه ځايَ ئې کوچ وکړ کوچ په کوچ خوړي ته راغلل بیا ئې په سونیاله قرار ونیو +

## ذکر د ملک اکوړي او د ده د اولاد چه د تمام ختک خاني او سرداري ئې په خپل نچل وار کړي دَه +

ملک اکوړي ولدِ درویش محمدؐ چه چغو ئې بوړلي واېي چه په توره ډېر مړني بهادر وه او سخي نهایت وه چه که صبا به ئې وُو بیګاه به ئې نه وُو که بیګاه به ئې څه موجود شوي وُو صبا به ئې نه وُو هر څه به ئې چه په لاس راغله صرف ئې د یارانو د فقیرانو وُو +

چه کښېنل کا توره سپینه — دنیا لوټِيي بازینه
نیمر غُنډِ که نه شي — د عنبر غُنډ به شه

نقل دي

نقل دي چه له کربوغني راغني د سرېنالي وته يو جماعه به ور سره وَه هميشه به يې تاخت باخت کاوه په هغه آوان دور د اکبر بادشاه او د مرزا حکيم د اکبر ناسکه وروړوه ۰ ميرزا اکبر په هندوستان کښې وه د کابل صوبه يې په ميرزا حکيم سپارلي وَه ۰ شه بيګ چه د ميرزا حکيم نوکر وه د ميرزا حکيم له لوريَ په پېښاور کښې وه ۰ چه ميرزا حکيم مړ شه کابل آکبر ونيوه هغه شه بيګ خان کور شه بيا خان دوران د کابل صوبه‌دار شه ۰ وايي چه د اکبر بادشاه په وخت د هندوانو د جوګيانو ډېر قدر وه ملک اکوړي په سبب د غيرتِ مسلماني ډېر جوګيان وژلي وُو چه اکبر بادشاه ته راغني دا خبره مشهور وَه اکبر بادشاه خني پښتنه وکړه چه څو جوګيان دِ وژلي دِي ۰ ده به عرض ورسول چه نور م شمارلي نه دِي يوه مرندريځ د غوز چه م يې په مټ کښې ساتلي دَه لوي مټ خني ډک شوي دي ارشاد م د کليمي ور ته وکړکه به مسلمان شه امان م به ورکړ که نه مړ م به کړ ۰ نقل دي چه د شه‌بيګ خان کور وروړ يې د لاسَ مړ شه په هغه آوان د اُلس زور نه وه دي يې تنګ کړ چه دا هسي زورآور سړي دِ تاله لاسَ مړ شه نه ور دروِمه له مونږ نه وُړزه ۰ دي روان شه چاچو په پېښاور کښې وه شه بيګ خان کور ته حاضر شه ور ته يې وُوِ چه دا تقصير د ماله لاسَ شوي دي اوس زه کفن او چاړه در لره راغلم ۰ شه بيګ خان سروپاي او څه نقد هم ورکړه رخصت يې کړ ور ته يې ووېل

چه دا هسي دستګیر به زه مړ ولي کړم ته ورځه په خپل تام کښې کښینه زه به په لښکر
درشم جنګ به سره وکړو هرچه م له لاسَ وشول شاد وروړ خون بها ده + ملک
اکو چه وتام ته راغي قوم يُ هم ور سره ملا وتړله سنګر ئي د لښکر په میله وکړ +
واپي چه دوه جنګ ئي عظیم وکړه طرفین سره ډیر ومړل اما اُلس ئي له ځايَ بي ځاي
نه کړ شه بیګ خان په بیارته وجاروت + بنځوا تر راتلو د دي اُلس ماندوزي او ډنګرزي
په دا ملک میشته وُو + هرکاه چه اکبر بادشاه په تعاقب د میرزا حکیم راغي هاله لا
قلعه د اټک بنارس بنا شوي نه وَه و نیلاب ته راغي ده په خصمانه د لاري زمینداني
طلب کړه + عبدالرحمان خورم میرخیل او بعضي ډنګرزیو قوم د ملک اکو ورته یاد کړ
چه ده خپل ځان نامدار کړي دي + حسب الحکم د اکبر بادشاه ملک اکو ورته راغي
ملازمت ئي د اکبر بادشاه وکړ دا ملک ورته مرحمت شه له خیرآبادَ تر نوښهرَ پوري
ځاي په ځاي خپل عالم قایم کړ منصب ئي ورده ته ورکړ + ملک اکو مرد دانا وه منصب
ئي قبول نه کړ په عرض ئي ورسول چه که منصب زه يراځي واخلم دا نور قوم به را سره
حسد وکا خدمت به ستا سربراه نه شي بادشاه ډکوټي په دالار مقرر کا چه اُلس به
په لاپج د حصي او د رسد د کوټي خدمت د بادشاه په اعتقاد خاص اداکا + بادشاه د
ده التماس قبول کړ فرمان ئي د کوټي ورکړ راغي وخپل تام ته ئي حقیقت بیان کړ وارو ملا

ور سره په دولت خواهئِ د بادشاه وتړله اوس اُلس د ختټک تر بلوه چه سرحد د یوسفزیو
دي او تر لکي چه سرحد د عیسیٰ خیلو دي تو طن لرِي تمام دا ملک به په طول د اووه
ورځو لار لرِي چه په غاړه د آب سیند واقع دي هره هره تپه خپل خپل جد لرِي ٭ حد
د انوخیل دي له خیرآباد ترغابښي ترجانګر چه سرحد د افریدیو دي او حد د بولاقو له
ملکهرِي ترطري اوحد د ختټکو د چوترِي چه میرخیل دِي له ډینګوټه تر تلَ دوربنو ٭

## ذکر د ختټک د اُلس چه د نورو اُلسونو سره ئِ بدِيَ کړِي دَه

د انوخیلو د بنګښو د درسمندو سره خصومت شوي دي دیر قتال اوجدال ئِ
یو د بل کړِي دي د لوهانړیو د عیسیٰ خیلو د سارنګو د موسیانو د میرئِ خیلو د نصرتیو
سره کرات مرات سخت جنګونه شوِي دِي دوه ځل لوهانړِي په چوتره راغلل ٭ یو ځله خلیفه
ماشِي خیل چه بنه کدخداي وه لوهانړیو مړ کړ بیا میرئِ خیلو او نصرتیو په سارنګو او
موسیانو غلبه وکړه له لکي نه ئِ جلا وطن کړه وخوشاب نه لاړل او وزیرو سره عداوت د
میرئِ خیلو شوي دي ٭ بیا تریو او بولاقو په ملک د اوانړ سکسیر او بنکته ترسرحدَ د
بهرِي او د خوشاب لاس د غلبي او د تسلّط بیاموند دا ملک ئِ خراب او اوجاړ کړ دیر
اوانړ ئِ نو بنځي بندِي کړِي کم وبیش ځلوېښت زرَ اوانړ نو بنځي په بند شوي دُوُ
په ضبط په ربط د خان علیّین مکان تریو بولاقو دست درازِي پرېښوه هغه ملک د جبّال

قلي كهكر شه ؛ میرخان زوي د جبارقلي په اغوا د سنبلو بنګي خیل و بلل چه رفاقت
خمونږ وکړئ چه د بلوڅو سره جنګ وکړو امّا خپل قول ئي مات کړ کم و بیش سل ځوانان
ئي د بنګي خیلو مړه کړه ؛ بیا ملک اکو مرحوم دوه دري ځل په آفریدیو وزغاښت بیا
عداوت او دښمني د یوسفزیو په میراث خان علیّین مکان ته پاتو شوه ؛ او جنګ دا
وه چه یوسفزي ئي د مصري کوټ جلاوطن کړه مصري کوټ شاید مصري بانډي ته وائي ؛
ښه ښه سرداران د یوسفزیو مړه شول یحیی خان ملک مامور کړ هرګاه چه شهبازخان
پښه په رکاب فتح مآب کښېښوه خوب او آرام د یوسفزیو ورک شه کرّات مرّات ئي منده
مړه کړه هر څو پلار منع کاوه دي نه منع کېده د یوسفزیو په بدیئ کښ د پلار په حیات
ئي سخت سخت زخمونه په تن اخستي وُو آسونه ئي په جنګ کښ ګډه کړي وُو پس له شهادت
د یحیی خان په وخت د خپلي سردارئ له مندړو له اکوزیو نه ئي خراج او باج آخست
تمام مندړ ئي په ضرب د توري مسخر کړي وُو ؛ په میان د اتمانزیو او صدوزیو غلیظ
او شدید عداوت وه نور مندړو د سیصدي او کمال زیو او امازیو حمایت د اتمانزیو
وکړ لښکر ئي په وهل د مرغز جمع کړ ؛ الس د صدوزیو ملک الو عمرخیل زوي د ملک
بلوچه یګانه آشنا د شهبازخان وه له څو نورو کدخدایانو سره په اتفاق ئي راستاوه التجا
ئي شهبازخان ته زوره خپل احوال د کم قوتئ او غلبه د غلیم ئي عرض کړه معاونت او

استمداد ئي وغوښت ÷ شهبازخان د ډېر لښکر سره روان شه په مرغز ئي ډېره ونیوه په ورتلل د شهبازخان اتمان زیو منډړو برهم وخوړ تفرقه شه کلي ئي د اتمان زیو وسول کړ وبیش یوه سیاشت هورته وه کار ئي د صدوزیو محکم کړ بهاکوخان ئي خان او سردار د دوی کړ ÷ صدوزیو ته ئي هسي نصیحت چه په کار د اُلس راځي وکړ ÷ دوي پیښکښي د شهبازخان تر نظر تیره کړه نور را روان شه کور ته راغي ÷ هرګاه چه بهاکو خان استقلال پیدا کړ خاني ئي جاري شوه په سبب د خپلي کوته اندیشيِ احسان ئي د شهبازخان فراموش کړ شیخ نظامي فرمائي ÷

له طبعي دښمن خیر مه غواړه یار د حیات اوبه غوښتي نه شي له مار

دوه دري خل ئي تمام منډړ جمع کړ د سیند غاړي ته راغي کلي دَ بولاقو ئي خراب کړه ÷ یوخل شهبازخان په لږ جمعیت تر سیند پوري وت په جهانګیره ئي ډېر جنګ وکړ دختکو سورو سواره د یوسفزیو مات کړه دوه دري تبر پرتاب ئي ماتي یووړه ښه سرداران ئي ملک چندتر وغیره پریستل مړه ئي کړه کیجم دار آسونه په لاس راغلل ÷ لیکن پیاده و د یوسفزیو په پیاده و دختکو زور وکړ راهسک ئي کړه په سیند ئي ویشتل نولس شل کس ختک په میدان د جنګ ومړه خلوښت پنځوس کس په سیند ډوب شول ÷ شهبازخان چه احوال په دا منوال ولید له صف دغلیم مطابق د سنتِ سیدالمرسلین مردانو غُندِ

خان يُ له ورطې د هلاکت نه ويوست په جنګ جنګ په ګډ د ډېر سباک راغي يوه زبونه ببرۍ ولاړه وه په هغه کښ کښيناست د قبيلې سره پورې شه امّا ببرۍ په ډوبيده وه په هزار مشقتَ تر پورې شه همه مُسَلَّحُ خوانان آسونه بړکستانونه سره په کښ وُو اميد د خلاصې نه وه حق تعالی هغه کشتۍ را پورې کړه ÷ خان عليّين مکان هم په دا ببرۍ کښ د پلارَ سره وه لا جنګونه ئې ليدلي نه وُو ډېره ئې په مخ نه وَه پس له دې واقعې په دوه درې مياشتې لښکر ئې د اُلس طيار کړ د مانېرۍ په کلي د بهاکوخان ورغي هغه کلي يُ وواهه راوجاروت بهاکوخان پسې تعاقب وکړ شکست يُ بيامونده ډېر عالم ختي مړ شه د ګجو په ترکۍ ختي پس مانده وختل خلاص شول غانمًا سالمًا لښکر دَ شهبازخان کورته راغي د هغه اول جنګ چه شکست شوي وه بيا په دا فتح نقش درست کښيناست ÷ اُلس د منډړ په اطاعت او په مال ګذارۍ راغي دوه درې ځل بيا بهاکوخان لښکر جمع کړ تلاش تردد ئې وکړ امّا هيڅ کار ختي ونه شه ÷ په سن د زر پنځوس د هجرت شهبازخان د لښ جمعيّت سره په اکازيو چه تپه د کمال زيو دَه په مال ګذارۍ کښ سستۍ کړه سور شه حکم ئې په تاخت د مال موېشې وکړ تر زرو زيات غوا موېشې په لاس راغلې په هغه شپه باران هم ډېر وريدلي وه موسم د عين ځېلۍ روژه په خوله وه غنيم ورپسې راغي جنګ شروع شه ساقي بيګ چه زوی د اوم خان وه آس يُ په غشې وويشت شه

تنخ پایئ ئي وکړه له آس پرېوت زمکه خته لاي وه ساقي بیګ پټ سپاهي وه په خته کښې
پیاده تلي نه شه غلیم غلبه وکړه خان علیّین مکان ساقي بیګ ته مټ وکړ چه وائي خلي امّا
آس ئي پې شه + په دا کښې ساقي بیګ له خان علیّین مکانَ په ستنه شه په نورو ئي
وواهه په دا وخت چه خان علیّین مکان نظر وخپل پلار ته وکړ دي په شقیقه په
غشي ویشتلي شوي وه خپل آس ئي چه ګډ شوي وه او زنګون ئي چه په غشي ویشتلي
شوي وه ورته بنکاره کړ مطلب ئي دا وه چه دا احوال ئي پلار وویني او جنګ پرېږدي
روان شي چه بد خاي ویشتلي شوي دي + امّا په دائي نظر نه وه ورته ئي وفرمایل چه
ته وراندې شه په بل آس سور شه خان علیّین مکان دوه دري تیر پرتاب چه وراندې
لاړ آس ئي پرېوت پیاده روان شه جمیل بیګ وروړئي د نبال نیولي وه دي هم په لاس
په غشي ویشتلي شوي وه لاس او نیزه ئي دواړه پیلي وُو دوه دري تیر پرتاب چه لاړ
هم هغه آس چه ساقي بیګ ئي پریښلي وه سورو نیولي راوست په هغه آس سور شه
پلار نه راغي پو بل غشي هم په دا تردد کښې په خنګل وویشت شه + امّا جنګ ئي کاوه
مال مویشي ئي تر بلړ راپوري کړ هاله جنګ منقطع شه میرزا علي حسن خیل هم په دا
ځل مړ شه + له لري خاي نظر د شهبازخان په میرزا علي وه په عین جنګ کښې
ئي خان علیّین مکان ته وُوِچه میرزا علي مالیده چه ومړ + هرګاه چه جنګ وشلیده

طاقت د سوارئ ورته پاتو نه شه له آسَ کوز شه بند ئي د نیزو ورته ساز کړ پیاده ؤ واخست نمازخفتن کورته راغلل ÷ په دا جنګ کښ هیڅ یو سورخموند بي زخمَ کور ته رانه غي هرڅوک په علاج د خپل زخم مشغول شه ÷ نوبري چه دخان علیّین مکان د پنډئ په هډوکي کښ ښځ وه دوه دري تنو په انبور ونیو په زور به ئي وکیښ پس له دوهٔ ورځو ئي خان علیّین مکان را واخست پلارته ئي راوړ دوه دري پرهارونه ئي نورهم ؤو عرض ئي وکړچه کوم پرهار مو درد دیوکا÷ و ئي فرمایل چه پرهار د سر÷ خان علیّین مکان وپوهیده چه دا زخم مشکل دي÷ پس له پنځه ورځوچه په آخر د رمضان زخمي شوي وه په پنجشنبي د شوال له دارِ فنا ودارِ بقا ته ئي کوچ وکړ÷ دا تاریخ ئی د شهادت خان علیّین مکان په فارسِي به پښتو ویلي دي ÷ چه د فارسِي ترجمه دا ده

دجمعي په ورځ په میاشت د رمضانٓ — خان په لورِي د میدان کړ آس روان
په عُلیم ئي بري وموند زوراور شه — خوپه غشِي ئي زخمي شه شیرینخان
ورځ د ورکي اختر هم دَ پنجشنبي وه — چه ئي کوچ وکړ ترِ پاتي شه جهان
که ئي کال د شهادت څوک وپوښتینه — لس نیم سوَ کالَ واوره په ښه شان

دا تاریخ په پښتو دي

سن د هجر زر پنځوس وه چه شهید شه شهبازخان

له زخم سره کزن هم وواهه دي ډیر په زړه زړه ور وه پروا ئي د زخم نه وه د یک شنبې په ورځ ئي اودس وکړ سرئي برهنه کړ مسح ئي وکړه باد وواهه دوه ورځي ئي ژبه له گفتار بنده شوه وصیت ئي ونه فرمایه ❊ څلور فرزندان دده پاتو شول یو خان علیّین مکان چه مشر وه بل فقیر جمیل بیگ دریم شمشیر څلورم میرباز ❊ هرگاه چه خان علیّین مکان په سن و سال له نورو مشر وه په سرداري د ایل د الس نامزد شه بهادرخان چه ئي مشر تره وه هم په دا کار متفق وه تربرونه ئي هم په خدمت سرگرم وو ❊ فیروزخان او جلال خان او عبدالله خان په هندوستان وو له دي واقعي په لاري چه کورته راتلل خبر شول په ډیره تلوار وطن ته را ورسیدل ❊ پس له څلویښتو ورځو پښه د خان علیّین مکان له زخم ښه شوه او پس له دوه دري ورځو ښکار ته روان شه حضرت بزرگوار شیخ رحمکار ته ورغي دعائي تړ وغوښته لښکر ئي په بهانه د ښکار جمع کړ په ډېرا ورځ ئي په انتقام د غلیم په کلي د اکاخیلو سواري وکړه څو ورته بهادرخان راضي نه وه چه دا رنگ په رونړه سواري هیڅ کړي نه ده امّا ورغي اور ئي په کلي پوري کړ حکم ئي کړي وه چه سپي سړي هرچه په مخه درځي په قتل ئي رسوئ هرچه په

مخه ورتلل دواب چارپاي نربنځي هلکان په هيڅ ئي صرفه ونه کړه مړه ئي کړل دوبنو
رود ئي د دوي په غوليو کښ روان کړ وينې د سپيو د سرپو کهې وړي بهيدي دوه
دري کلي نورچه متصل د هغه کلي وُو سواره ورغلل هغه ئي هم وسول+ نماز ديگر
را وجاروت کمال زيو امازيو سيصدي لوکي وليد شيږ اووه زرخلق ورپسي
و وت دوه کروهَ ورپسي راغلل هغه ځاي چه شهبازخان زخمي شوي وه
ودريده جنګ ئي شروع کړ دوی مات شول څو تنَ نور هم تِر مړه شول
نور را وجاروت تر بلي پوري ورپسي لړلړ راتلل نيژدي ورتلي نه شول+
چه تر بلي را پوري شه په ځاي ودريدل نماښام نيژدي شه په دا تردد
کښ يو بسي مطرب په ټوپک زخمي شه کور ته راغي مړ شه دا رنګ لويه
فتح حق تعالی رايکان د خان عليّين مکان نصيب کړه + په دا ميان کښ
فرمان د سرداريئ له حضورَ د بادشاه په نامه د خان عليّين مکان صادر
شه او منصب د بلار ورته مرحمت شه +

قصه

# د شهزاده بهرام او د ګل اندامي

تصنيف د فياض

# قصه

## د شهزاده بهرام او د ګُل اندامي

روایت دي له ثقهٔ راویانو — په دا شان ئې خبر کړي سامعانو
یو بادشاه عالي جناب صاحب د روم وُ — خوب خورم ئې سکونت وه دانایانو
هر دولت ورته موجود عالي مقام وه — په اسباب کښې محتاج نه وه عاقلانو
مګر داچه زوي نه لاره په کور کښې — آرزومند وه د دې کار صاحبدلانو
زوي وشه واورئ پس له څلوېښت کالو — نوبتونه غږول ښه مطربانو
د فرزند بشارت وُشه و بادشاه ته — مبارک ورته ویل ډېر امیرانو
چه فرزند ئې خوب صورت ولید په سترګو — خزانې ئې کړې خیرات په مسکینانو
د فرزند نوم ئې بهرام شهزاده کېښود — پرورش د شهزاده کړ دائیګانو
چه شپږ کالَ د بهرام شهزاده تېر شو — په مکتب ئې کښېناوه د کاتبانو
شهزاده بهرام شپږ کالَ وه په درس کښې — نور ئې علم کړ حاصل له عالمانو
خط او ښکل ئې په ښه شان سره یاخه کړه — په هر کار کښې شه کامل له کاملانو

چه بهرام شهزاده شه د دولس کالو
استعمال ئې کړ د غشو له یارانو

بیا د توروګذارونه ئې ښه زده کړه
بیائې ښه نیزه بازي کړه له سپاهیانو

چه پنځلس کال تیر د شهزاده شو
شجاعت ئې ښه معلوم کړ منصفانو

په سواري کښ شهزاده هسي شهسوار شه
دبدبه ئې ډیره شوه په دښمنانو

په قوت کښ پهلوان تر پورته نه وه
ځاي په ځاي تر حذر کړ پهلوانانو

چه بادشاه دا هسي حال د بهرام ولید
سرفراز ئې کړ بهرام له مخلصانو

بیا ئې ښي جوړي زیبا بهرام ته ورکړي
چه قیمت ئې ګران کاوه شاهوکارانو

بل شپیته زرَ سواره ئې وزیسي کړل
خوف خطر به تر کاوه ډیر مفسدانو

په ښه شان سره بهرام ستایه **فیاضَ**
مرتبه کښ دي حساب د عاشقانو

بیا بادشاه ورته ویل واوره فرزنده
که هوښیار يي خبر شه ځما له پنده

دا رونق د سلطنت واوره بهرامَ
پرورش د رعیّت کړه خرد منده

په عاجزو باندِ رحم ډیر ثواب دي
د مظلوم آزارول خداي ته ناپسنده

په هردم شکر دَخداي کوه بهرامَ
چه خداي درکړه مرتبه هسي بلنده

جواز نه لري آزار دَ مظلومانو
له آزارَ بازار نشته دانشمنده

| | |
|---|---|
| په هر کار کښ تدبير ښه بويه بهرامَ | دا خما نصيحت واوره عقلمنده |
| شهزاده بهرام قبول دا نصيحت کړ | تسليمات ئې ورادا کړه په خوچنده |
| دو دسته سلام ئې وکړ وخپل پلار ته | توبه کار شه د عاجزو له ګزنده |

شهزاده د پلار خدمت واره په ځاي کړ
ځکه کار ئې شه **فياضَ** له آننده

| | |
|---|---|
| بيا بهرام وِ خما پلارَ مهربانه | د صحرا د سيل خوښي مِ ده بې شانه |
| د صحرا د ګل چمن ته مِ زړه کيږي | ننداري لره ئې و رغلي خندانه |
| غرض دا که مِ رخصت کړي وصحرا ته | سرفراز مِ په رخصت کړي عالي شانه |
| د مدت ارمان لرم چه سيل مِ وکړي | نهايت ارمان لرم بلند مکانه |
| پلار رخصت ورله ورکړ سامعانو | سواره پلي په خدمت ورته يکسانه |
| شهزاده د فوج تر ميان نيت ئې د ښکار شه | سرورونه ئې وهل په خوخو شسانه |
| چه ور ورسيده دوي د ښکار وځاي ته | پروت زمري وه خوف ئې نه کيده له جانه |
| په لښکر کښ د بهرام همره ځوک نه وه | چه ګذار له د زمري ورشي مردانه |
| شهزاده بهرام له آس ورته کوز شه | ملا ئې وتړله ښه له ښه سامانه |
| مخامخ زمري له ورغي يارانو | درست لښکر ئې په فرياد کيوت يکسانه |

دوي وِ خيال د زمرِي مه کوه بهرامَ
دا زمري عالِي قوت لِرِي نادانه

شهزاده التفات نه کاوه ودوي ته
د باور توره ئي وويسته له ميانه

مخامخ زمرِي له ته ويره ئي نه شوه
ملکرِي ورسره وَه له پاک سبحانه

زمرِي خوله ورپسي وازه کړله راغي
له غرنبا ئي خلقه شوله حيرانه

شهزاده او زمري دواړه مقابل شو
زمرِي پورته کړه څپيړه ناګهانه

ورستو پښي د زمرِي ونيوي په لاس کښ
نور ئي زور له خپلَ سرَ کړ کردانه

لکه طفل ئي جارويسته له خپلَ سرَ
نور په زمکه ئي ارتاو کړ ناګمانه

هر بو بند ئي د زمرِي واړه جدا کړه
دَ زمرِي د ځوندون خونه شوله ورانه

چه بهرام هسي کشتِي کړله آغازه
آفرين ورته وايه شه له هرچانه

اميران اووزيران ورلره راغله
سلامونه ئي کول په څوڅو شانه

شهزاده په لښکر حکم کړ يارانو
چه دا مړ زمري حاضر کړئ ترسُلطانه

چه زمري ئي د بهرام پلار ته حاضر کړ
آفرين ئي پرِوايه هزار چندانه

ورځ دويمه بهرام بيا ښکار ته روان شه
ورسره واړه لښکر واوره له مانه

ناګهان ئي په نظر کښ هوسي راغي
شهزاده عراقِي تيز کړ بي پايانه

کم خطا غشي ګذار کړ وغرځه نه
نور ئي وويشته هوسي دآس له شانه

چه ئې ښکار په کمال و رسیده واوره
نو ر په بېرته را روان شه له دامانه

نه په لاري شپه پرِ راغله اي یارانو
له لښکرَ شه غلط ځما جانانه

چه صباح شه آس ئې پرېښود ځیدو نه
نور پیاده ئې ښکار کاوه په زړه پرېشانه

اوه شپې ورځې ئې تېرې په صحرا کړې
د ښکار غوښې ئې خوراک وي له دړکانه

وقت د خاښت اتمه ورځ ښکار ته روان شه
په یو غره باندِ ور وخوت له میدانه

یک تنها به گزیده مل ئې څوک نه وه
زیست روزګار ئې وه **فیاض** له صحرانه

هغه غرچه شهزاده پرِ برابر وه
رنګارنګ چینې حوضونه منوّر وه

چه ور وخوت شهزاده د غره و سر ته
یو ګنبذ ئې هلته ولید پرِ اختر وه

چه ئې سر کړ په ګنبذ دننه واوره
دو کانچه په کښې ځلور ذاتَ مرمر وه

عجب تخت وه رنګارنګ په ښه نقشونه
پرِ د پاسَ یو صورت مخ ئې قمر وه

وه چهره جامې آغوستې د سرو وي
نقاشانو ظاهر کړې خپل هنر وه

په لیدو د چهرې هسې لیونې شه
چه پر مینه کښې ورتېر ترمال و سر وه

چه بهرام ورته نږدې شه عاقلانو
یو سپین زیرې هلته ناست ښه معتبر وه

شهزاده بهرام سلام ورباندِ ولو
له سپین زیرې علیکم زر میسّر وه

بیا بهرام ورته ویل سپین بړیٓ وایه
یکتنها دِ سکونت د چا خطر وه

دا چهره دِ دَه وشان ته کښېنولې
راته وایه دَ کوم باغ گُلِ ستبر وه

نور سپین بړیِ ورته وِ جهان گشته یم
دم په طور د سوداگر دا مِ گذر وه

ناگهان د چین په ښهر برابر شوم
وه فغفور نوم ئې بادشاه کار ئې ښتر وه

گُل اندامه د فغفور بادشاه دختروه
چه په چین کښې خجالت ورته د نمروه

په دیدن به ئې څوک مړه څوک وو بیهوښ
خاي په خاي به د وینتلیو شور وشر وه

څومدهٔ مِ هلته تیره په دیدن کړه
له خپل زړه سره مِ کړي دا مشور وه

چه چهره دگُل اندامې ښکلې بوبه
بل یو فکر مِ له زړه نه لړوبر وه

تر په چین کښې نقاشان وو بحساب
بوتو بلَ په نقشو کښې لړوبر وه

دا چهره ئې لا له سازه کړله څوانَ
ما هغه نقّاش مور کړی په سره زر وه

شوم روان له چینَ راغلم تر دې ځای
ما ته څوره په دا شان دا بحر و بر وه

مال دولت مِ کړو قسمت په وارثانو
کنارِه له خلقَ شوم نصیب مِ غر وه

دوه مریونه څه اوښان مِ دي ساتلي
چه تو ښه لا له راغلي کار مِ ښتر وه

دا چهره مِ ده وشان ته کښېنولې
صورت نه دی دا مثال مخ د دلبر وه

د بهرام په زړه ئې اور بل کړو **فیاضَ**
د سپین بړیِ گفتگو د غم خنجر وه

نور سپین دیري وِ اوس حال راته ووایه
ماخپل حال درته معلوم کړ عالي رایه

شهزاده ورته ویل زوي د بادشاه یم
د پدر نوم مې کشور عالي کشایه

زه د ښکار په نیت وتلي وم له کورَ
دَ هوسې په منډ راغلم تکوپایه

شپیته زرَ مې لښکر باني په ورستو
نصیب راوستمَ زه ستا تر دي ځایه

اوس مې زړه د ګل اندامي صفت یوړه
بې لیدو مې په زړه اور بل شه له وړایه

که مې مرګ دَچین په ښهر وي وله لاړم
یا به مور شم په دیدن د دل ربایه

دغه پس بیا سپین دیري ویل ځوانَ
هغه جل دَه بې وفا واوره خودرایه

دغه خیال له زړه بیرون کړه که هوښیار بې
وخپل کور ته په شتاب ځَه له دي ځایه

ستا په شان شهزادګان دیر ورته پراته دي
دا نظر په هیچا نه کا آک لګایه

شهزاده وِ دچین ښهر را معلوم کړه
نصیحت دِ اثر نه کا روښن رایه

دچین لار ورته سپین دیري کړه معلومه
شهزاده په هغه لار شه تکوپایه

سپیني اوښي ئې په مخ باندِ رواني
دا وینا به ئې ویلي شه بې رایه

په خودرائي محبوبه پسي روان شوم
که مدد را سره وکړي غني خدایه

یا نصیب د ګل اندامي مِ اوربل کړي
یا مِ زړ په زمکه خښ کړي غمزدایه

یوه میاشت ئې په دا شان سره پند وکړ
په یو باغ باندِ راکوز شه ناکهایه

هغه باغ وه دخوښۍ واوره **فياض**
شهزاده په کښې مقام شه دلکشايه

| | |
|---|---|
| شهزاده په باغ کښې ناست وه ځمادله | تماشا ئي يو ساعت د باغ کوله |
| يوه ښه مانړۍ ئي وليده په باغ کښې | په زينت او په حکمت چه جوړيدله |
| سرئي خپل په ډال کښې کيښود په قرار شه | ناګهانه پرِ آواز وشه له ښله |
| و ئې پوزته شه له خوب خبردار شه | دا ناره و شهزاده ته رسيدله |
| شهزاده ورلره سترګي کړي راپورته | يوه ښځه ئي په سترګو وليدله |
| د نعمت خوانچه په لاس ورته ولاړه | د بهرام په مخ کښې راغله ودريدله |
| نور بهرام وِ طعام چادي راستولي | هغه ښځه ئي په دا رنګ پوښتيدله |
| هغي ښځي جواب دا رنګ وله ورکړ | دا مقام دي د صيفور ښاپيرِي دِله |
| دي بادشاه دي دَ پيريانو مسافرَ | هم قوّت لري بي شانَ ځما دِله |
| ځلور ورونړه دده نور هم دلاور دِي | په قوّت کښې سپائي کاندِ يو له بله |
| دوي مِ واړه دِي په ښکار پسي وتلي | دا قصه مِ ګُل وتا ته وُويله |
| سراسيا دَ هغو خور زه ئي دائي يم | مهماني هغي وتا ته راستوله |
| بل په ما ئي حکم کړي په دا شان دي | ورته وايه دائي پس له تناوله |

چ

چه مِ ورونړه خبر نه دِي پاڅه درومه ‏ نیکخواهي درسره کا هغه بلبله
چري نه چه دِ آزار کا مسافرَ ‏ له دي ځايَ پاڅه ځه بي تحمله
شهزاده وِ کار غرض مِ په چا نشته ‏ مسافر یم ما دمه دلته کوله
بیا دایِي وِ درته وایم مسافرَ ‏ ویره وکړه ته په ځان له سرَخیله
نور بهرام وِ دایِي ځه درته وایم ‏ زه له خپلَ فکرَ یم بي غمَ کله
هرچه وه نصیب دده طعام ئي وخوړه ‏ لاس ئي پورته کړه دعا ئي ولوستله
دایِي پورته کړه خوانچه دده له مخي ‏ په محل د سراسیا ننوتله
شهزاده په باغ کښ ناست وه سامعانو ‏ ناګهان د سورو ګوره وختله
یو په مثل لکه غراته په مخ کښ ‏ هغه نور په دنبال شائي ساتله
چه دَ باغ په نواحيِ راغله یارانو ‏ د غضب ژبه ئي شماس ته خوزوله
چه داځوک ځما باغ دننه ناست دي ‏ په تلوار وربیي درومه شماس ګله
لاس ترلي ئي حاضر راوله ما ته ‏ یا ئي سر له تني لري کړه افضله
چه شماس ور نه نژدي شه غږ ئي کړه ‏ په عزّت سره مِ مخي له را زغله
شهزاده وِ مسافر یم کار دِ نشته ‏ غل خو نه یم چه غصّه دِ راته شوله
شماس آس ورباندِ تیز کړ وله راغي ‏ نور مصريِ ئي په بهرام پسِيِ وکښله

شهزاده ورپسې پاخیده له ځایَ　　نورئي توره له شماسَ را نیوله
نورئي وتاړه شماس په وني پورې　　د فریاد ناره ئي هرخوا رسیدله
بیا قماس ورپسې راغي قهرولې　　چه مصريِ ئي لا له ورایه خوزَوله
جنګ ئي وکړ لاس ئي بړنه شه یارانو　　شهزاده شکر ثنا دخداي ویله
هم قماس ئي وتاړه په وني پورې　　شهزاده د مردیت کُشتي کوله
په داشان سمیل کمیل دواړه بسته شُو　　شهزاده بهرام به خوا پرِ سرَوله
خو آخر صیفور خبر شه له دي حالَ　　مردانه نیزه ئي تر سرَ جارویستله
په بهرام باندِئي غبرګ خبردار شه　　په هلکو دِ مړانه زده کوله
شهزاده وِ بربر راشه اي صیفورَ　　خبردار به شي دجنګ له کلاکله
د نیزي ګذار صیفور په بهرام وکړ　　شهزاده ئي توره مخي له راوړله
د صیفور د نیزي سر شهزاده پرې کړ　　د صیفور نیزه په زمکه پریوتله
نور صیفور توره بیرون کړه له غلافَ　　نورئي توره و بهرام ته ځنډَوله
د بهرام په سرئي توره راګذار کړه　　شهزاده بازِي د توري واخستله
شهزاده پرِ ګذار وکړ اي یارانو　　وجنګ ریز ته ئي خوښي لا زیاتیدله
بهرام غبرګ په صیفور وکړ خبردار شه　　دَ صیفور له لاسَ توره پریوتله

د صیفور په ملا زنځیر شهزاده ونیو　　په صیفور یې سخښي ډیره راوستله

دوروخه یې نور آغاز کړ بې حسابَ　　یو پر بل به یې حمله سره کوله

شهزاده وِ هیڅ ګناه د آسو لښتته　　په پیاده به سره جنګ کړو یو تر بله

دواړه کوز په زمکه وو دریباده یارانو　　په پیاده یې مدعا سره کوله

نور صیفور یې تر سر پورته کړ یارانو　　نور یې کوز په زمکه وُولیشت بې تحمله

شهزاده یې په سینه کښیناست یارانو　　د صیفور خولګۍ له جنګ پاتې شوله

شهزاده وِ هغه زور قوت دِ خه شه　　اوس به بیا لاني کوي لا یو تر یله

نور یې وناره صیفور په وُني پوري　　سراسیا یې نندارې لره راتلله

شهزاده د ښمنان وتړل **فیاضَ**
د بنه خداي ثنا یې ډیره وُویله

شهزاده یې د سرونو شه لیواله　　نور مصریځِ یې پسې روپسته فی الحاله

شهزاده دِ ستاسي مرګ راغی یارانو　　دا ژوندون ستاسي وماته شه ناخواله

له ګردنَ به کلي ستاسي جدا کړم　　د حیات طمع اوس مه کویځِ بیګا له

مسافر آزارویځِ اي ظالمانو　　دغه لار به ژبي په امن له جنجاله

شهزاده ګذار کاوه ور لره راغی　　ناګهان په ده آواز وشه فی الحاله

نصیحت چه در ته پلار کاوه عاقلَ — هغه پند دِ فراموش کړ خُما لاله
پلار دِ وِ چه پر عاجزو رحم بویه — له دښمن سره نیکي کړه نیک افعاله
کُنډ وي چه دِ دوستان ښي په نکيئ کښ — نصیحت يئ در ته کړ له دي مقاله
شهزاده نظر په بیرته کړ پیارانو — یوَه ځل يئ ولیده صاحب جماله
شهزاده يئ و ښایست ته حیران شه — چه ښایست يئ وه روزيئ له ذوالجلاله
شهزاده کړه هلته یاده ګل اندامه — ګفتګو يئ د آشنا له خط د خاله
شهزاده دِ چه به کله ورسیږم — چه له هجرَ يئ ناتوان یم بي مجاله
بیا بهرام له سراسیا ته کړه پوښتنه — دِ چه وایه ما خبر کړ له احواله
څوک یي ته او دا څوانان وایه چه څوک دي — سراسیا وِ دا م ورونړه نیک خصاله
دغه مشر دي صیفور شاه د پیربانو — شه و تا ته ملامت صاحب کماله
ملامت ورونړه خُما شهزاده تا ته — زه خبر یم سراسر له دي مقاله
مګر عرض لرم و تا ته بخښنده شه — خداي دِ يي تا لري په دین دنیا خوشحاله
شهزاده وِ ستا منت خُما قبول دي — تا خوانځه وَه رالیږلی بي دلاله
ولي دا را ته معلوم کړ خوب صورتي — چا خبر کړي ته دَ پند له قیل وقاله
چه پلار ما ته نصیحت کړ په کوم ځاي کښ — په څه شان سره خبر شوي له دي حاله

دي وِ زه په سيل وتلي دم د روم ته　　په دربار ستايي حاضره وم اي لاله
پلار چه تا ته نصيحت کاوه بهرامَ　　تا ويل چه زه و بنکار ته کړه برحاله
شهزاده وِ حمايت د درونړو مه کړه　　در ته وايم ژبه بند کړه له دبي ناله
مسافر آزارِوي دوي ظالمان دِي　　ته خلاصيږي مسافر د دوي له جاله
مناسب دِي چه دوي ووژلنم دلبري　　دغه کار به ژئ په امن له جنجاله
زه د غنم په کاري تللم مسافر وم　　دويِ خما په سرک راضي شوُ هم ليواله
اوس يُ وژلنم بله نشته نو زمانَ　　مسافر به ځي بي غنم نر عيساله
سراسيا وِ دوي به عقد در سره وکړي　　نور به نه کاندِ آزار پس له دي کاله
سراسيا له مخَ خلاص شوُ درونړه واړه　　شهزاده دا نيکي وکړه بي مثاله

نور بهرام پينه په رکاب کړله **فياضَ**
خود چين په کاري ته د رب رضالـه

سراسيا د درونړو پرانته بندونه　　چه بهرام په بنه هنر ترلي وُونه
صبغور کار سر تور پيني ابل و بهرام ته　　نور را پريوت د بهرام په قدمونه
نور بهرام وِ له بديئ توبه‌کار شه　　په غوږ واوره دا خما نصيحتونه
بيا صبغور وِ دا ويل خما قبول دي　　پس له دي به د هر چا کړم خدمتونه

مکر عرض کړمَ و تا ته اي صاحبَ
دوي د خداي دي وُمته خما عرضونه

يوه شپه راغخه تيره کړه بهرامَ
يا نصيب چه کله بيا شي ديدنونه

مونږ َ واړه ستا لښکر يُو واوره جانَ
هر چه وايي مونږ به کړو هغه کارونه

سر و مال خمونږَ ستا دِي مرِيَ
و ښبنتن ته د غلام خه مُجتَتونه

شهزاده په بيرته وجاروت يارانو
نور ښاديُ شوي د صيفور په محلونه

شهزاده په باغ کښ ننوت يارانو
دُو په باغ کښ رنګارنګ عجب ګلونه

يو ساعت يُ تماشا د باغ کوله
نور د کور ته صيفور ور روان شونه

د صيفور په تخت بهرام کښيناست يارانو
و شماس ته صيفور کړه اشارتونه

چه ارکان د ښهر واړه را طلب کړه
چه اداکاندِ بهرام ته سلامونه

د شماس په ويل جمع شول نور راغلل
و بهرام ته واړو وکړل تعظيمونه

عام خلق واړه رخصت شُو وخپل کورته
هر چه خاص وُو هغه واړه پاتي شونه

شهانه مجلس يُ ساز کړ عاقلانو
ښوښو قسمَ به وهل شُو نوبتونه

هسي شان خړبي آغـازه شوه يارانو
چه پريښته به يُ آواز سره مرغونه

شهزاده صيفور ته دُوِ خما وردرَ
ډير به ښه وِيي که شِي منع سرودونه

صيفور وکړ اشارت و شماس ګل ته
نور يُ منع کړ مجلس په حکمتونه

شهزاده وِ آس نیزه را ته حاضر کړي
بیا صیفور دُوِ بهرامَ خپما وروړَ
پر دښمن خپما په ملکَ کښ دي بهرام
زه د جنګ ته خوځل ورغلم صاحبَ
دي په اصل کښ دي دیو نوم ئې افراد دي
ته او موږ به سره ورشُو اي صاحبَ
دا م عرض دي چه کوَم شهزاده تا ته
شهزاده ور ته وېل صیفورَ وروړَ
زه ورځمَ یکتنها هغه دښمن ته
هغه ځاي را ته ښکاره کانږېږ له ورایه
که م مل شي غني خداي په وقت د جنګ کښ
د صحرا لیوان به واړه پرِ ساړه کړم
صیفور وِ موږ به رودېږو په بیړته
شهزاده وِ باري پاځيږ رواسیږيږ
چه دعا ئې کړ تمامه سامعانو

چین ته ځَم را ته دیر دِي منزلونه
روي د خداي دي دُمنه خما عرضونه
چه له دستَ ئې همیش کوم آهونه
سا بري هرګز بیا نه مونډ په جنګونه
خپما کله پرِ رسیږي قُـوتونه
ګُندِ وي د هغه وښي علاجونه
زه نور نه وینمَ تا غُسترِ مړونه
خه پکار دي تحمل تر ساعتونه
څه حاجت دي چه موږ واړه سره ځونه
تا سي واړه سره کښېنيږ په کورونه
د افراد په سر یه وکړم ګُذارونه
چه دعا را ته کوي په دیر کالونه
نداري ته ځمونږ دیر شي هوسونه
په دعاۓ خداي ته پوړته کړل لاسونه
بیا ئې زر په آسو واچول زینونه

شهزاد بهرام د جنګ په نيت روان شه — اميران ئې واړه تله په رکابونه
چه نزدې شه د افراد ديو و ديرې ته — و آسمان ته تله لوګي په هوادونه
نور بهرام پوښتنه وکړه له صيفوره — څه سبب دې چه راخيږي دغه ګردونه
بيا صيفور وِ دا لوګي د هغه ديو دي — چه اوده وي دا يُ ږځي د خولې دودونه
شهزاده وِ تاسي ودريږئ په بيرته — بس کړيئ مه ږغي وپاندِ مه بږدئ قدمونه
شهزاده يوازې لاړ شه و افراد ته — پياده وروغي د ديو تر بورجلونه
افراد ديو اوده بې غمَ وه په چاه کښې — شهزاده ورپاندِ وکړه آوازونه
شهزاده مَلا کړه محکمه پسې کوز شه — قدمونه ئې ايښول په حکمتونه
دوکابچې ئې په کښې وليدې يارانو — پرِ دپاسَ عجب ايښې وُو تختونه
افراد ديو په يوه تخت باندِ اوده وه — په بل تخت باندِ ئې وُو د پښو سرونه
يوه چل وَه بناپيسته پيده کوښې کښې — چه و پښو ته ئې پراته وُو زنځيرونه
شهزاده وِ چلې چا يې بنده کړيې — څه واقعه دَه ستا په ځان وايه حالونه
دي وِ زه يم بناپيريئ ديو راوستلې — چه په مخ رِم اوښې ږځي د غم رودونه
د خلاصي لوري رِم نشته دي اي ځوانَ — زيست روزګار رِم هميشه د غم په خونه
دي ځما ديدن کوي نور په امان يم — دروغ عالم را باندِ کاندِ ګمانونه

ختم

خما عمر په دا خاي کښ شه اي خوانَ
هغي جلي وِ زلميَ چـرته راغـلي
که په سر بانډ سين يي بيرته درومه
تا به دي يوه نوري کړي مسافـرَ
بيا بهرام وِ زه په ده پسي راغلي
يا به سود افراد پري کوم په ميدان کښ
نور دي جلي وِ وقت دا دي که گذار کړِ
شهزاده وِ د غلا کارواره مردار دي
نور ئي پسه د افراد راکښوه يارانو
بهرام الله اکبر کړ پسـي راغي
افراد سر پسي را پورته کړ له خوبَ
شهزاده وِ ستا په مرگ پسي راغلي
افراد گرز پسي را پورته دوه لاسي کړ
شهزاده ئي گذار تير په بنه هنر کړ
شهزاده پرِ گذار وکړ اي يارانو

دا رم حال دي در ته کړم حکايتونه
دا کافر به دِ اوس مات کانډ هډونه
که بيدار شي بيا به وکړي ارمانونه
نور تيره به کا په تا بانډ غابنونه
نور څه نه لرم په زړه کښ مطلبونه
يا به مړ شي دي خما په اندامونه
که بيدار شي بيا به وکړي ارمانونه
خامخ جنگونه کانـډ بنه مـړونه
خير نه شه لا ئي تول کړه اندامونه
د افراد په خاطر تير شو هيبتونه
ده وِ خوک نوتي خـما په خونه
تر زمانَ به دِ خلاص کړم له زوندونه
چه ماغزه ئي تار په تار کړم په غزونه
مړني حکمت کاوه په خو قسمونه
نور ئي پري کړه د افراد د زړه رگونه

چه افراد گذار کاوه په زمکه پریوت — د فریاد ناري يې تلي په هوادونه
افراد ورو ورو سړيده خو آخر سور شه — نور د ويښو بهيدل نر نه رودونه
او هغه چل روح افزا نامه پيريږ وه — چه وليښو ته يې پراته وو زنځيرونه
شهزاده هغه چل خلاصه کړه له قيده — له کوهي يې د بهر ته کړه بېرونه
مال دولت يې د افراد واړه تاراج کړ — د صيغور په حواله شو دولتونه
شهزاده د چين په لار ځني روان شه — له هر چا نه يې غوښته نور رخصتونه
شماس چل ويښته مجره کړه وبهرام ته — په ويښتو کښې د شماس وو حکمتونه
نور شماس وِ که مشکل در پاندِ راشي — يو ويښته شهزاده کيږده په اورونه
زه به ذر در ته حاضر په هغه وقت شم — خصمانه به دِ کوم په مسکاتونه

له هغه پس شهزاده لار شه فياض
گل‌اندامی يې په زړه ايښي داغونه

دغه پس شه روان بهرام وچين ته — لبسم الله يې کړه سور شه دآس وزين ته
يکتنها په لارِ ته مل يې څوک نه وه — صد رحمت شه په دا شان هيي يک دين ته
د درياب په غاړه ورغي حيران شه — چه مرجونه يې خاته د عزه سرين ته
آدم زاد يې هرګز نه ليده په سنزګو — اميدوار وه وچل رب العالمين ته

ناګهان

ناګهان يې يو کاروان په نظر کښېوت
کاروان ناست ده په جهاز کښې ته وچين ته

په جهاز کښې له کاروانَ سره کښېناست
اميدوار د ګل اندامي و ګل ګين ته

چه جهاز په غاړه ورغي له خـيرَ
خوشحالي شوه پردلبري بهرام غمګين ته

د درياب په غاړه درست کاروان ډيره شه
صدقي يې ورکولي هـر مسکين ته

له کاروانَ بهرام وکړله پوښـتنـه
له دي ځايَ چين نزدي که هولوين ته

يو څوان وُوِ ځلور ورځي مـنزل باقي
په پنځمه ورځ به ورسـيي دلبرين ته

شهزاده وِ زه رخصت چين ته روان يم
سوداګر وِ صد رحمت شه ستا د دين ته

شهزاده بهرام رخصت شه لـه کاروانَ
اي فياضَ ته روان د يار چين ته

شهزاده بهرام رخصت شه له کاروانه
آس يې تيز که لکه غشي له کمانه

په مطلب يې نوري زلفي د آشنا وي
ستانه وربيي ته په زړه خندانه

د عشق اور يې په خاطر آرام يې نه شه
د ويښتليو صحت نه رټي بي جانانه

شپه او ورځ منزل يې کړ حرص يې زيات شه
سري کار يې وه د يار له باغستانه

د چين بنهر ورته څرګند شه له هوادَ
وي مانږيَ يې بنايسته لوړي بي شانه

له هوس ور نه خوب يوړه اوده شه
په خندا خندا ور ته ستري ستومانه

په ورو ورو د چين و ښهر ته نزدي شه
دو رُخه لښکر ولاړ د چين په مخ کښ
شهزاده په لوړه وخوت ښنداړو ته
زيري نور د نمازديګر پريوت جنګ سوړ شه
دروازي يې خاي په خاي کړي د چين پوري
شهزاده بهرام چه راغي د کړ خوا له
څوکيدارو ته يې ډيري ناري وکړي
د يل برج په دروازه کښ بهرام غږ کړ
هغه غږ په بهرام وکړ څوک يې خان
ده وِ ور کړيُ را ته لرِ کارواني يم
نور يې بيرته دروازه کړه و بهرام ته
هغه څوان وِ ته وُرُښي کاروان دِ څه شه
شهزاده وِ زه وُرُښي کاروان رم وُرستو
په صباح به خود را وُرسي دي څاي ته
نور بهرام وُو اورنګ ته خما ورور

قضيه ور بانډ راغله ناګهانه
توپ خاني په خلاصيدي د جنګ له ميانه
دو رُخه سپاهيان لويده د آس له څانه
هر چا چل چل سري يوړه له ميدانه
څوکيدار ور ته ولاړ وُو له بنه څانه
دروازي وي واړه بند نور شه حيرانه
هيڅ په مينځ کښ آواز نه راته له چانه
يو سړي نوم يې اورنګ وه نيک مردانه
يل په دا وخت څه مطلب لري له چا نه
مطلب نه لرم په چا واوره له ما نه
هغه څوان ور بانډ ډير شه مهربانه
بيګتنها ولي راتلي نر دا مکانه
وُو ستومانه نن شوه لار ور بانډ ګرانه
څه تلوار ده خود به راشي په آسانه
څه به وايي دا جنګ دي د چا له چانه

نور اورنګ وِچه غوږ ونیسه و ما ته
د جنګ حال واوره له ما خما مهمانه

د بلغار شهزاده نوم د ده بهزاد دي
اته لس لکه یې لښکر واوره له ما نه

په مطلب د ګل اندامي دي راغلي
خزاني یې دِي راوړې بې پیا یانه

ګل اندامي قبول نه کړ خما ورورَ
نور یې جنګ ونښلاوه خما جانانه

د فغفور قوّت د جنګ نشته صاحبَ
ګل اندامه به په زور ګانږِ روانه

دغه جنګ د ګل اندامي په اوربل دي
په جنګونو سپاهیان ډېر شُو سرګردانه

چه اورنګ بهرام خبر کړ له دي حالَ
اندېښنو یې صورت تاو کړ شه پرېشانه

جوړ یې آس او وسله ورکړه اورنګ ته
زوړ لمځي یې ترِ طلب کړ تر زمانه

د لمځي نوري یې ساز کړه په ساعت کښ
رز یې واغوست هغه کِند په زړه پرېشانه

صباح جنګ نه وه لښکر کوراکورناست وه
شهزاده بهرام خبر شه له دي شانه

کِند آغوستي د بهزاد په لښکر ګډ شه
حال یې زده کړ زه فقیر یم بې ګُمانه

بهرام وکړه ننداره په درست لښکر کښ
د بهزاد د توري غږ وه تر جهانه

چه ننابنام شه بهرام بیا راغي ډېري ته
غم زده وه حق حیران په زړه پرېشانه

ناګهان ورته ولېښته د شماس یاد شُو
د ولېښتو د سو په فکر شه یکسانه

نور ولېښته یې د شماس وسوه **فیاضَ**
شماس زر ور ته حاضر شه تر زمانه

شهزاده وِ برابر راشه اي شماسَ　　په غمونو م زړه غوڅ شه بي الماسه
صباح جنګ د ګل اندامي په اوربل دي　　د بهزاد لښکر بيحدَ دي بي قياسه
د نغفور د جنګ قوّت نشته دي وروره　　خرابي راغله مدد شه له اخلاصه
په صيفور م سلام وايه چه وخت دا دي　　له لښکرَ سره راشه بي لباسه
ورنه وايه بهرام ډوب د غم په چاه دي　　ته بيغمَ خوب کوي د تخت دپاسه
شماس ورغي حاضر شه و صيفور ته　　نور يُ کړ صيفور خبر له عام وخاصه
دم درحال صيفور لښکر کړ واړه جمع　　شه حاضر سلام يُ کړ په دواړه لاسه
نور يُ وِ شهزاده ځه حکم په ما دي　　ته خښتن زه دِ بنده يم بي لباسه
نور بهرام ورته ويل صيفورَ وروره　　که م خلاص کړي له بهزاد غُندِ خنّاسه
دعوي کبر د ګل اندامي د اوربل دي　　خبر شه وروره خما له التماسه
په دا توره شپه همه تر تيغَ تير کړه　　چه تني يُ وي پرتي جدا له راسه
د بهزاد لښکر اوده پيريان پرُ کړه شو　　غيبيانه ګذار کيده د آس دپاسه
څوک اوده دُو څوک يُ وليس تر تيغَ تير کړل　　چا اغوستي جامي مړه څوک بي لباسه
په بهزاد ليي بهرام شهزاده راغي　　په بهزاد يُ سختي راوستله بي قياسه
د بهزاد کله بهرامَ شهزاد پريکړه　　په برچه کښ يُ وِيله له خپل لاسه

شهزاده وبنکو بو خط په هغه شپه کښ
چه خبر شي هر سړي له استغنا ئه

د بهزاد قاتل بهرام دیا واوريږ خلق
دا کار نه دي په تحقیق د یل له لاسه

هغه خط سر د بهزاد په برچه پوري
د بهزاد سر يې پیلي پېر. د پاسه

شهزاده بهرام چیل آس عیفور له ورکړ
وِ چه آس م بته ساته له چیلَ لاسه

د صیفور لښکر يې کل واړه رخصت کړ
بهرام پاتي یکتنها ستــه العیا ئه

بهراد کِنډ د نقیریږ واغوست فیاضَ
په کِنډ پوښو څوک گمان کړي بي افلاســه

شپه شوه تیره صبحدم راڅني ربزاه شوه
نور په چین کښ ځاي په ځاي دا رنګ غوغا شوه

د بهزاد څه شور وشر ده په لښکر کښ
شپه وَه بنمه چه فریاد او واویلا شوه

نندارو ته عالم وخوت وقـتلعي ته
چه نږدي وقتَ جنګ نشته څه بلا شوه

ځاي په ځاي مړي پراته ښیي ولاړي
د زخمیانو په کښ لا ډېره لړزا شوه

و نغفور وته چا وُوِ خــمونږ شاهَ
د بهزاد په لښکر دا رنګ واقعا شوه

نغفور سور شه امیران ور سره واړه
د لښکرو يې په هر لوري زوکا شوه

د بهزاد لښکر يې ولیده په سترګو
خر بَتَتُو سړي کړو دِ حیراني لا شوه

له زخمیانو يې پوښتنه کړله وايئِ
څه بلا وَه چه په تاسي را پیدا شوه

هغو وُرِ مونږ هيڅ نه ليده په سترګو — غيبانه ګذار کيده غيبي زرګا شوه
په ساعت کښ يې همه ترتيغ تير کړو — خلقه په يوه درنګ هسي فنا شوه
نور يې بيا مونده ښيزه سر خط پرِ پوري — تر بادشاه پوري يې وره ظاهره دا شوه
هغه خط بادشاه په لاس د قاضي ورکړ — قاضي ولوست هغه خط معلومه دا شوه
چه بي شکه د بهزاد قاتل بهرام دي — د کاغذ ژبه په دا رنګ ګويا شوه
بادشاه وُرِ بهرام څوک دي معلوم کړي — مړي دي دا مړانه تړ ادا شوه
وارو وُرِ بهرام څوک دو نه معلوم کړي — نوم يې اوس مونږ آوريدلي ګرانه دا شوه
وزير وُرِ بهرام اوسي په آسمان کښ — اي بادشاهَ که دِ غوره دا وينا شوه
ملائيک د ده لښکر ور سره راغله — څکه پيښنه په بهزاد دا رنګ سزا شوه
نور په شپه ور ته راکوز شه له آسمانَ — د بهزاد د لښکر هيره بسم الله شوه
بادشاه وُرِ صد رحمت په تا وزيرَ — دغه ستا پوهه بنا بيښته غوره ځما شوه
مال دولت يې د بهزاد واړه قسمت کړ — د بادشاه د وزير غوره دا وينا شوه
کل زخميان يې د طبيب په حواله کړه — له بادشاه خَلقَه سل رنګ رضا شوه
خط ښيزه يې د خزانچي په حواله کړه — د دي دواړه خصمانه ګوره په تا شوه
بادشاه دور غزاوه بيا په تخت کښيناست — خَلقَه په مبارک ور ته ګويا شوه

مړيني

مرني بهرام کند پوش کبنيناست فياضؔ
شپه او ورځ ئي وديدن ته تمنا شوه

بهرام سترګي کړي خوني جامي رنګيني
په دربار کښ ديار پروت لکه فقير وه
ګرد غبار ئي د دربار د دوارو سترګو
لا ليدلي بهرام نه وه ګل اندامه
ده وي ووېنم په سترګو ګل اندامه
شپه او ورځ ئي د ديدان ارمان په زړه وه
ناګهان په چين کښ دا رنګ غوغا شوه
دا دستور د ګل اندامي وه په مياشت کښ
خلقه ئي ډيره جمع شوه ديدن ته
بهرام هم تر هغه ځايَ پوري راغي
له ماڼيُ مخ ګل اندامي را ښکند کړ
خلقه ئي له ديدنَ ليونيُ شوه
د ښايست ثاني ئي نه وه په جهان کښ

کند ئي واغوست شه فقير د يار له ميني
په مطلب ئي شينکي خال د نازنيني
شو رانجه د هغي مستي دلبريني
په صفت ئي پسي رنګ کړي جامي سپيني
ما په دي لپي جامي کړلي رنګيني
بل خوراک ئي وه نهريُ واوره کهيني
نن به مخ وښو له ولايه د ګلګيني
مخ به دي يو ځل ښکاره کړ چه م وېني
رنګارنګ زلمي راتله پکړيُ ئي سپيني
رنګارنګ وي خلقي جوړي رېښميني
جوړ شعلي د نمر ښکاره شوي تکي سپيني
چه ښکاره ور ته چين کړ مه جبيني
ځکه تلي پسي د هر ځا اوښني سپيني

شهزاده بهرام ئې لا دېر ليوني کړ
نور مخ پټ کړ د مسند بالا نشيني

چه نمابنام شه خلقه کوراکور لاړه
بهرام پاتې يکتنها لاړ شه دوهيني

تر کوټې د گل‌اندامې بهرام راغې
په دېوال پورې کښېناست د دلبريني

نور ئې لاړ د تلو کته يو ځاي ئې ونيه
په ديوال کښې وه ساز کړې هنريني

په ورو ورو ورته نزدې شه چه وگورم
چه احوال کړم شه معلوم د دلبريني

په هغه بهرام وروختوت هغه ځاي ته
د محل ښځې اکثر وي زريني

گل‌اندامه وه د تخت د پاس ملاسته
سهيلۍ ورته ولاړې بهستريني

درسته شپه ئې شهزاده ننداره وکړه
چه هر کړ ځاي په ځاي نارې کړې صباحيني

صبحدم شه بهرام بيا راغې دېرې ته
په فراق ئې وچې کړې د زړګي ويني

په دربار کښې ورته پروت لکه فقير وه
بل ئې بنې د عشق خبرې کړې رنګيني

ورته تير تر سر و مال شه **فياض**
چه په زړه ئې زخم کښېنود گل رنګيني

بيا ديدن ته مياشت دويمه شوه له بره
زاره ځاي له خلقه راغله اکثره

لکه نمر مخ گل‌اندامې را څرګند کړ
خلقه ئې په نظر کړه زېر و زوره

شهزاده بهرام ئې وليد په عالم کښې
نور شيئ ئې په خاطر شوه برابره

د عشق اور ور بانډې بل شه لاړه بیرته
نه یې خوب نه یې خوراک نه یې آرام شه
عالم لاړه شه کوراکور دیدن تمام شه
دا دستور د ګل اندامي مقرّر وه
رکیبیې به یې په لاس د ویښتي ورکړه
ویښتي نښه له هرچا نه را طلب کړه
د بهرام ته یې ویل کِنډپوش فقیر
بهرام ګوته کړه ارتاده رکیبیې ته
دولتۍ رکیبیې یوړه اندرون ته
د بهرام ګوته یې ولیده په سترګو
چه دا ګوته دِ له چانه دَه راوړي
دولتۍ وِ ښنا په درکښ یو فقیر دي
ګل اندامي ورته وِ دولتیې ویښتي
له دي ګوتي شه معلوم چه شهزاده دي
ورته وایه ګل اندامي یسم لیکلي

په پهلنګ د پاسَ پیریوته ارتره
د بهرام په عشق کښ ناسته کوره کړه
بهرام راغي و ډیرې ته له منظره
دي په ویښته ګرزوله برادره
نښه آخله له هر چا نه معتبره
دولتۍ بهرام له راغله برابره
ته هم نښه لا له راکړه قلندره
چه ښمي یې وه له لعل و له ګوهره
تیره شوه د ګل اندامي تر نظره
نور یې وِ دولتۍ زر کړه ما خبره
لوي قیمت لري دا ګوته دَه بهتره
دغه ګوته له هغه شوه میسّره
دا فقیر څوک خالي نه دي له اثره
د زړه حال یې کړه معلوم ترِ شَه خبره
ته خپل حال را ته معلوم کړه قلندره

که محتاج يې د دولت ناست فقير
په ساعت کښې به دې مور کړم له سره زره

که په ملک کښې دې دښمن وي هم ډوايه
زه به در کړم کومکي ستا له لښکره

نو روانه دولتئ شوه و بهرام ته
نږ فقير پوري راغله بختوره

دولتئ وې را ته وواېه ګندپوشه
دا خواب در څخه غواړم نازپروره

ګل اندامي زه نن تا پوري لېږلې
له تا غواړي دا احوال اي قلندره

ستا څه کار دي چه دوڅي دردي وهلي
په دا حال م زر نن زر کړه خبره

نو بهرام ورته ويل دولتئ ونځي
څه له څوک پوښتنه کړي له راه ګذره

دولتئ وې خواه مخواه را ته وواېه
مېرمين حال غواړي له تا ته مقرره

ته خپل حال په کاغذ وښکه لا له را کړه
ستا مطلب به شي که خداي کاندې ترسره

شهزاده حال په کاغذ باندې ظاهر کړ
هر يو حرف يې بې بها وه مرغلره

هغه ورځ چه يار له يار سره جواب کا
هغه ورځ وي له اختر بختوره

دولتئ د بهرام خط مېرمين ته ورکړ
اي فياض دولتئ په زړه زړوره

## خط د شهزاده بهرام

ته آګاه شه د فقير د زړه له تابه
د مخ حسن دې له فضل د وهابه

چه دِ زلفي په مخ تاو کړي الوولي
تا په ما باندِ داور لبني کړي بلي

چه دِ الېني د سرو تېک پاس په اوريل دي
خوب خوراک دِ له ما ورک کړ غم مِ مل دي

سور پېزوان دِ په سرو شونډو لمخېټي کا
ښما زړه در پسي ښکه واويلي کا

لونګين دِ په سينه باندِ زنګيرړي
فقير ښکه لکه مار هسي تاويږي

سر تر پايه لکه ګل هسي تازه يي
ښکه خوبنه د فقير بي اندازه يي

ته په چل بابست او حسن مستانه يي
له مسکين داسي ولي بيګانه يي

ستا تصوير چه په نظر راغي دلبري
هغه وقت بيخودَ لاړم نازپروري

هغه دم شوم را روان په لويه لاري
چه مِ اوښي په مخ دروِمي لاري لاري

ستا له عشقَ تشنه‌لبَ سينه کبابَ
سوي کله صحت مومي بي درياب

زه فقير يم هوادي نظر په ما کړه
روي د خداي دي په وصال مِ سره خوا کړه

ستا له عشقَ مِ زړه ډک دي له دردونو
د دوږخي په غاړه ناست ډک له ګردونو

آه وکابوم په هردم ستا له فرقته
نور آسمان ښما له آه راغله په بنګته

ستا له عشقَ ديوانه شوم نازپروري
بل له ځيلو بيګانه شومَ دلبري

لکه زلفي دِ په مخ پرتي دلداري
باور وکړه آرام نه لرم نګاري

زړه مِ ډک له دردَ سترګي مِ له آبَ
ستا د عشق په درياب سر تر پا غرقابَ

| | |
|---|---|
| ستا له زلفو بخت سیاه لرم دلبري | حال د غم و چا ته وایم نازپروري |
| د هجران دارو درمان غواړم له چانه | خود به ومرم عاجز ناست یم بي درمانه |
| نه آرام م شي د ورځي نه په شپه کښ | هسي غرق یم ستا د هجر په چپه کښ |
| ځما ستا په سر سوګند دي نازپروري | حال م دا دي ته ځما د زړګي سر یې |
| چه م لوستي ستا د مینې سپاره دَه | اندروت سینه م واړه صد پاره دَه |
| چه له زړه م ستا د زلفو مار پیچان دي | زړه م سوځي اندرون ځما نیران دي |
| مه شه هسي په عذاب ځوک نازنیني | چه له سترګو م بهیږي صافي وینې |
| ستا د حسن آوازي دي په عالم کښ | په هر ښهر په هر کلي عزه په سم کښ |
| په آرزو هم ستا د وصل بادشاهان دي | په تمام چین کښ میښته دِ عاشقان دي |
| لکن نه به وي ځما په شان عاشق | له همه وُ عاشقانو یم صادق |
| دا کلام ځما په دا باند تمام شه | د جواب يې منتظر خامه غلام شه |

## خط د گل اندامي

| | |
|---|---|
| در ته وایم ته آگاه شه قلندر | چر نه وي گذار وخوري له خنجر |
| تخت و تاج د بادشاهي در تحفه کوم دي | چه آخستي دِ ځما د وصل نوم دي |

نه درویش په درویشانو کښې حیل کار کړه — د شاهانو له کوچۍ پاخه رفتار کړه
له شاهانو وصال غواړي قلندر — نه له حالْ د بهزاد یې ناخبر
د بلغار شهزاده نوم د ده بهزاد وه — چه خدا د عشق په بحر کښې اُفتاد وه
له آسمانَ در ته کوز بهرام فلک شه — چه لښکر ور سره مل هم د ملک شه
د بهزاد لښکر ئې کل تر تیغَ تیر کړ — د بهزاد سر ئې په خاورو کښې نور زیر کړ
ویره نه کړې چه بهرام خما عاشق دي — اي درویشَ هم هغه خما لایُق دي
اي ګدایَ وصال څه رنګ خما غواړي — بیهوده م په دربار ولي دلاړي
لړ لړ له دربارَ م روان شه — واوره غوږ باسه کوتاه خبر په ځان شه
کوره ومړي قلندرَ خبردار شه — په تلوار سره روان م له دلبار شه
چړ نه چه دِ آزارکاندِ سپاهیان — په هر در کښې م ولاړ دي جلادان
په آرزو به نه خما د وصالت — سختئِ وویني هرګوره د قیامت
د محشر په عالمونو چه عذاب دي — هغه واړه مقرّر دَ ستا په باب دي
پښي دِ وباسه له چینَ په شتاب — په ذو زغله چه دِ کار نه شي خراب
نصیحت در ته کوم په خوخو شانَ — بیا به نه مومي خما وصل جانانَ
هسي رنګِ عاشقان په ما شیدا دي — چه په شپه کښې هم د ورځي په ژړا دي

که خبر شي هر څوک ستا له دي احوالَ — ځان به خلاص نه کړي څما له دي جنجالَ
بي له مرګَ به لاړ نه شي نه له چينَ — په وقت دروهٔ اي څما د در مسکينَ
زه هيڅرم زه په تا باندِ هرګوره — خلاص به نه شي با څما د عشق له توره
دا جواب څما په دا باندِ تمام دي — با څخه دروهٔ فقيرانو ته سلام دي

## خط د شهزاده بهرام

دا څما سلام په تا دي نازپروري — وسوم وسوم ته څما د زړګي سر بي
ګل اندامي ته څما د سترګو تور بي — بي له تا م پکار نه دِي څونه نوري
زه م ستا له جدائئ قلم قلم شه — مخ م تر په اوښو ځګره م الم شه
وصال وښيه و ما غُنډِ حيران ته — په ويل مه کړه و ما غُنډِ ګريان ته
لاړ به نه شم زه په خير ستا له بورجلَ — ما د زړګي په اختيار له سرَ څيلَ
سرنګون لکه نرګس يم ستا له غمه — ستا د عشق شتئ م دَه په خاطر سمه
ستا له درَ به لاړ نه شم له خوارئ — ما مني په تندي دِي د شوارئ
ستا کوشه څما کعبه د ناف غوټئ — لاړ به نه شم که م غوټي کړي بوټئ
د فرهاد مسکين له حالَ شه خبره — او که نه يي اوس له ما واوره په غوره

چه د عشق له غمه مړ وطن ئې عزتشه — نور شیرینې ته معلوم دغه خبر شه
شهزادګۍ شیرینه ووته له کوره — په فرهاد پسې روانه شوه سرتوره
چه نژدې شوه د فرهاد د جنازې ته — نور ئې وکتل د مړګ و دروازې ته
په فرهاد باندې را پربوته ملاله — له فرهاد سره ومړه بې محاله
له فرهاد سره ئې ضمه د جبین خال کړ — په دا شان ئې له مسکین سره وصال کړ
ته هم هسې وفا واخله ګل اندامي — روي د خدای دې اندیښنې مه کوه خامي
ستا په درګنې همګې چه عاشقان دي — درته وایم هغه واړه خام کاران دي
صادقان نه دي دا واړه عاشقان — د دې واړو عاشقانو زه یم خان
که هرڅو درته فقیر غریب مسکین یم — له دې واړه عاشقانو زه غمګین یم
همیشه یم ستا له غمه زه ګریان — بل څوک په شان به نه وي سرګردان
لکه زه چه سرګردان یم بې میرمنې — نه په زمکه نه آسمان وي پاک دامنې
مغرور څوک په زړه دي زر قصاب — چه م غوښې پریکوي له دې جواب

# خط د ګل اندامي

بې شوده خبرې مه کړه دیوانه — عقل نه لرې لِنډپوشه ستانه

بیا به نه مومي ښما د وصل کام — در ته وایم دالسیري ولي پیغام
بیا به نه مومي ښما له باغ ګل — پوچ بي ځايَ تیردي دا عمر خپل
راشه وباسه له زړه دا ښما خیال — بیا به نه مومي ښما د جبین خال
ستا په شان عاشقان ډیر ښما په در — اي ګِند پوش آخر ځي خاوري په سر
ځان به کړي آخر په دا سودا خراب — اي ګندپوشَ مه کړ دغه اضطراب
در ته وایم عمل وکړه په دا پند — دا ښما وېل به در کاندِ ډیر خوند
واوره لور وَه د بادشاه نوشیروان — تله حمام له بنایسته د ګل په شان
باد ئې لري کړ پلو مخ ئې ځرګند شه — یو فقیر چه ولیده په عشق ئې بند شه
نو مین په شهزادګۍ هغه فقیر شه — په کوڅه کښي ور ته پروت دځان په ویر شه
شهزادګۍ ور ته رِ لري شه فقیرَ — نصیحت در ته کوم واوره اسیرَ
فقیر نه لري کیده له هغه ځايَ — همیشه ئې سرِي کار وه له هي هايَ
شه خبر نوشیروان د ده له حالَ — د هغه کله ئې پریکړله في الحالَ
تا ته هم زه نصیحت په هغه شان کړم — نه یو واري نصیحت په هر زمان کړم
اي درویشَ که رِم پلار په دا خبر شي — ستا و سر ته په هغه ساعت خطر شي
چه لا پلار رِم خبر نه دي پاڅه درومه — له دي کارَ اجتناب واخله مغبومه

دلسوزي م په تا ډېر دَه دلـبرَ
غوږ پر کیږده اي ښا د زړګي سرَ

طمع مه کړه چه دا باغ به ښاستا شي
پند م واخله دلسوزي ښا په تا شي

له دي ځايَ پاڅه څه کوښه کنار شه
له دي عشقَ په توبه په استغفار شه

زرخريده غلامان م پاسبانان دي
دوي ښا څوکيء کوي ډېر ظالمان دي

که خبر شي چري ستا په دا احوال
سر به ستا له تني غوڅ کاندي في الحال

بيا به تا په اوښ بالا کاندي پريشان
ګرزوي به دِ بازار کښ په دا شان

نفس به ستا پاره پاره وي په جمدر
دوي به وايي هغه دا دي قلندر

چه مين وه دي د چين د شاه په لور
څکه ييښ د ده په حال شه دا ضرور

د ننه وري به په دا شان په هري لاري
په هر لوري ګرزولي سي بسياري

در ته وايم که لري څه شرم ننګ
زياتي مه شه ته ښا د در ملنګ

که بهرام چرته خبر شي د فلک
دي به شي په دا خبره باندي کلک

له زمين به دي بالا کړي په آسمان
له آسمانَ به دي ولي په دا شان

چه هډوکي غوښي پوست به دي جدا شي
له وجودَ به دي ستا ژوندون جلا شي

چه ته مر شي بيا به څه کړي ګل اندامه
راشه مه ګوزه له ځلَ ننګ و نامه

نتيري کوه د خپلو فقـيرانو
په آرزو کښ مه اوسه د بادشاهانو

# خط د شهزاده بهرام

شهزاده وِ سروِ قدي ماه رخساري
ته راضِي د دردمندانو په آزار يي

لږ نظر وکړه و ما غُندِ حيران ته
روي د خداي دي نظر مه کوه آسمان ته

وفا راوړه جفا لري کړه له ميانَ
په پرهر م مرهم ته کيږده جانانَ

د مجنون قصه دِ څرنه آوريدلي
چه له عشقَ دليلا ئې وَه ويلي

ځان ئي ورک وه خو ليلا ورته ليده شوه
هم په دا وينا ئې ژبه چليده شوه

د ليلا په عشق کښ هسي مبتلا وه
چه په ژبه ئې نوم ښکلي د ليلا وه

بي آرامَ خالِي ناست وه له هوسَ
ځان ئې ځار کړ دليلي د در له څسَ

له مجنونَ څما عشق دي لا ډيرَ
ګل اندامي زه خالِي يم له لباسَ

ځان م هير دي هر ساعت راته ته ياده
دا وعده م په نامه د پاک مولي دَه

ستا له درَ به لاړ نه شم احبابَ
که د سر سودا م وکړي له قصابَ

ستا په در کښ خوار وزار وخسته بنده يم
زه په تخت د بادشاهيُ ناست بنه نه يم

ستا په عشق کښ م ځان سپک کړ نازنيني
اي په تخت د سلطنت بالا نشيني

ستاله عشقَ م په مخ رودونه ماز شُو
چه ترخه ويل له تا نه بي انداز شُو

دا حیات را ته تیاره مرگ روښنائي ده
چه د یار په درکښ ومري داناتي ده

ته چه ما و ته پیغور د تخت و تاج کړي
له پیغورهٔ مرگ ښه که م علاج کړي

زه له اصلهٔ شهزاده پلارم بادشاه دي
اوس یم خاوري ستا په درکښ حال م دا دي

ولي نوم در ته ځکه نه وایم چه دا دي
نه په ملک در ته ښکاره کړم چه څما دي

ستا په درکښ نمدپوش فقیر ملنگ یم
ستا له عشقه هسي شان بي‌نام و ننگ یم

سخت په زړه یم چه لا پایم تر دا اوسه
زیست روزګارم همیشه ستا له افسوسه

خدایه م بجره کړه ژړا چه خوار و زار یم
ستا په درکښ زه کښد پرش و لا پښتیکار یم

څو به پایم په دا شان څما هرغوبي
خود به ومرم آخرش څما محبوبي

څما پلار هسي بادشاه دي عالیشان
په دربارکښ ئي حاضر دي سلطانان

په دنیا کښ هغه نور چه بادشاهان دي
تامي د قبله‌ګاه م په فرمان دي

که حساب د هغو خپلو خزانو کړم
د سپاهیانو د لښکرو توپخانو کړم

ستا د پلار چه هغکي واړه منشیان دي
یا لوستونکي یا لیکونکي کاتبان دي

که همه واړه لیکي دا حسابونه
تر په ډک شي اویا زر کتابونه

دا حساب به ئي خلاص نه شي تر قیامته
که ئي وښکي همکي له کتابته

ولي نه وایم زه اوس چه شهزاده یم
لکه خاوري ستا په درکښ افتاده یم

# خط د گل اندامي

اي گندپوشَ په رښتيا ښما عاشق يي
شوه معلومه چه رښتيا يي نه فاسق يي

اوس به ور د دفا لري کړم و تاته
دغه حال زه په رښتيا وايم و تاته

ستا د عشق غشي م خښ د زړه په سر دي
هغه ورځ چه م ليدلي ستا بشر دي

ستا د ميني اور م بل دي په خاطر کښ
ښه شو دا که ليدي نه شي په ظاهر کښ

يو دم نه يم ستا له غمَ په آرام
روغ عالم ته په خندا يم په ناکام

ډير عنونه په تا نير شو ښما يارَ
پس له دي هوس خندا کوه دلدارَ

زه به ستا په رضا کار کړمَ مينَ
پس له دي به ستا خدمت کوم غمجنَ

تا چه حال را ته معلوم کړ شهزاده يم
اوس م خاوري ستا په در کښ افتاده يم

بيا دا حال د چا ته مه وايه دلبرَ
په غوږ واوره اي ښما د زړګي سرَ

هسي مه وايه چه زوي زه د بادشاه يم
هسي وايه نمدپوش فقير گدا يم

که خبر شي څوک په دا چه شهزاده دي
په دربار د گل اندامي افتاده دي

ښا ستا حال به معلوم همه عالم کړي
گفتگوي به ښما ستا لوز په هر چم کړي

ځان په دا فقيري پټ سا ته بهبود دي
هغه کار به زه کوم چه ستا مقصود دي

ستا همت زانه معلوم شه همت ناکَ      خداي دِ خال خما نصيب شهزاده ستاکَ
اميد دا چه خال و خط به خما ستا شي      صبر واخله چه حاصل دِ مدعا شي
خما ستا وصال به وشي خما دلَ      بي له تا رام شه تو به له يارَ بلَ
مگر دا چه صبر ته د خان توينه کړه      لرِ بيرته له زړکي نه انديښنه کړه
زر به ستا خما وصال وُشي ميڼَ      خاطر جمع فرياد مه کوه دردمنَ
زه په تا باندِ مبينه يم هرگوره      اندرون خاطر م ډک د عشق له اوره
پټ پنهم په سره راز کړو قلندره      چه وزګاره خلقه نه شي خبره

خما ستا په سر سوګند دي جفا نه کړم
هر چه ستا د زړه رضا هغه به زه کړم

نوريُ ورکړ دا کاغذ و دولتيُ ته      وِ بيُ زر بيُ رسوه هغي ډيريُ ته
دولتيُ کاغذ حاضر کړ و بهرام ته      شهزاده بهرام نظر کړ و پيغام ته
چه بهرام د کاغذ حال واره معلوم کړ      وِ بيُ شکر د يار زړه چه الله موم کړ
بهرام ډير په زړه خوشحالَ شه يارانو      چه معلوم يئُ کړ دا حال صاحبدلانو
په دربار د کل اندامي ناست فقير وه      په مطلب يئُ خال وخط دا يئُ تدبير وه
لا به کله په وصال زه سرفراز شم      په ټولي د عاشقانو به ممتاز شم

هم به کله مشرف په دا شرف شم — چه بې غمٔ په هر ځای په هر طرف شم
همیشه علی الدوام به په آدم یم — په ژړا په هر صبا په هر ماښام یم

آفرین په بهرام ډیر وایه **فیاض**
هره چار ئې مردانه بې اعتراض

هغه ورځ چه وه بهرام په ښکار وتلي — یو هوسي ئې وه په مخ کښ پاځیدلي
درست لښکر ور ته ولاړ وه په دا طمع — اوس به راشي په هوسي پس دي تللي
یوه ورځ ور ته لښکر په صحرا ناست وه — امیرانو دا خبر وه ګرزولي
چه صباح شه درست لښکر په صحرا سر شه — هم په دا سره نوبت وه غږیدلي
د بهرام خبر زر واخلئ وهر لور ته — څه بلا شوه چه لا نه دي چا روتلي
په بهرام پسې لښکر شه واړه ستړي — بیا ئې نه موند بېرته راغله سور وپلي
امیران ئې پلار ته ودریده بادشاهٔ — عرض لرُو که بادشاه ته رښتي قهرولي
شهزاده بهرام چه راغي د ښکار ځای ته — یو هوسي ئې وه په مخ کښ پاځیدلي
شهزاده ور پسې آس تیز کړ ناګاهٔ — مونږ لښکر ور ته ولاړ دي زغلیدلي
اوس بادشاه دِ حکم کا چه مونږ هغه کړو — د شاه حکم مونږ په سترګو دي منلي
بادشاه وِ چه اوس ورځئ بهرام وګورئ — دغه کارم دي وتاسو ته سپارلي

که خبر

که خبر چا د بهرام لا لسره راوړ
نصفي سهرم هوه ته دي بخښلي

و هر لور ته حکم لاړ چه بهرام کودي
په بهرام پسي روان شو سور و پلي

د بهرام د پلار اوېني شلي پیک وو
په دا واړو ستبرنک غوره آزميلي

په بهرام پسي بادشاه واړه رخصت کړه
و شبرنک ته بادشاه ډېر وه تقريدلي

که خبر دې د بهرام لا له را ته وړ
سر به ستا له تنې غوڅ کړم بريدلي

شبرنک پل د هوسي واخسته روان شه
ناګاه وه هغه ګنبذ ته رسيدلي

شبرنک ننوت دننه په ګنبذ کښې
يو سپين ديري په کښې ناست وه صورة ښکلي

ده سلام ور باندې ولو اي سپين ډيري
په نزدي مُده کښې څوک دلته راغلي

خوبصورت شهزاده بهرام يې نوم دي
د پدر نوم يې کشور تا آوريدلي

نور سپين ډيري ور ته وويل اي ځوانَ
وه راغلي ښايسته صورت ښاغلي

دا څهره يې وليده زړه يې پرې بايلو
له دي حالَ يې نور زه وم پوښتنيدلي

ما وې ځوانَ دا څهره د ګل اندامي
د فغفور بادشاه دختر چين يې دي کلي

که ما ډېر منعَ کاوه چين ته روان شه
څو د آس و شا ته وخوت الوتلي

نور شبرنک ويل سپين ډيريَ روي دخداي وي
ته د خدايَ دپاره څه بادشاه بللي

دغه حال ور ته په خپله خوله روايه
بادشاه ډېر پسي زهير دي زړه ختلي

له بادشاه نه به انعام در لره واخلم — هغه زوي د بادشاه ډیر وه نازولي
له شبرنګ سره سپین‌دیري راروان شه — د بادشاه په مخ کښي راغي ودریدلي
د بهرام حال ئې معلوم کړ و بادشاه ته — په دا زیري بادشاه دور وه غزولي
ډیر انعام ئې د سپین‌دیري لره ورکړ — نور سپین‌دیري ئې رخصت کړ بنه ناځلي
د بهرام حال چه معلوم شه د بادشاه ته — د لښکر تدبیر ئې کړ چه واستولي

بیا بادشاه په زړه خوشحال کښیناست **فیاضَ**
چه معلوم د شهزاده شه کور و کلي

د کشور بادشاه صالح نامه وزیر وه — په هر کار کښي پوهنده بنه ئې تدبیر وه
وزیر و باله بادشاه داوره حضور له — بادشاه ډیر په خوشحالئ ناست په سریر وه
وِ چه اي وزیرَ زر لښکر طیار کړه — بي حسابَ لښکر راغي لوي بهیر وه
وزیر وِ بادشاه دِ حکم کړي طیار یُو — په مجلس کښي ورته ناست هر یو امیر وه
په فغفور بانډ کشور بادشاه خط ولیکه — نور په خط کښي بادشاه ښکلي دا تقریر وه
تفحص ځما د زوي وکړه بادشاهَ — بادشاه ښکلي په قاعده هسي تفسیر وه
ستا په ښهر کښي م زوي بهرام ئې نوم دي — درغلي په خاطر ئې د عشق تیر وه
نور کاغذ ئې د وزیر په حواله کړ — او شبرنګ ئې د همه فوجونو میر وه

شه رخصت په هغه وقت لښکر وچین ته
غرض دا چه لښکر ورسیده چین ته
ترقلا دچین بهرواړه ډیره شُو
چه فغفور بادشاه خبر شه له دي حالَ
چه وزیر د بادشاه ورغي ملیا شه
نور وزیر وِخپل احوال راته وُوایه
نور وزیر پیشکشِي ورکړه بل وزیر ته
مطلب دا چه دَ بهرام احوال معلوم کړه
بیا ګنجور وِ بهرام نښته په داخاي کښ
مګر یو بهرام فلک راته معلوم دي
یو خدمت أي څُونږ کړي دي ښبرنګَ
ملائک دده لښکر په شپه راکوز شه
نور ئُي خط وښکه په نوره شپه روان شه
حال احوال أي شه معلوم په ضغه خط کښ
نور شبرنګ وِ هغه خط راته معلوم کړ

په خیرات ئي رضا کړي هر فقیر وه
هر سپاهِي په منزل ستړي هم حقیروه
ننداروته ئي دچین وکړي خیر وه
ملاقات له ئي لیکلي خپل وزیر وه
په ورتلو ئُي رضا کړي هر فقیر وه
څه دِ کار څه دِ غرض څه دِ تفسیر وه
بیا ئي خط ورلره ورکړ چه تحریر وه
په دا فکر کښ حیران ګنجور وزیر وه
که بهرام وي خود به هرچا ته تشهیر وه
هر صفت په کښ موجود روشن ضمیر وه
مونږ دي لیدلي نه دي څه بشیر وه
نور أي قتل کړ بهزاد چه لوي شریر وه
خط أي بیاموند شه صباح چه خوش تقریر وه
مونږ سنبال کړ قاضِي لوستي بو نظیر وه
دم درحال ئُي خزانچي راوست دستګیر وه

خِزانچي ته ئې وِخط دَ بهرام راوړه — خِزانچي ته په داوړو بانديِ مشير وه
خِزانچي خط دَ مجلس منځ ته ګذار کړه — شبرنګ خط د بهرام وپېژاند بصير وه
نور ئي وُوِخط ځموني دَ شهزاده دي — چاچه بل ګمان کاوه پوچ ئي تعبير وه
دا کاغذ ګوتي ځموني د شهزاده دِي — په بهزاد باندِ هم ده کړي شبګير وه

په دا حال بادشاه دچين خوښ شه فياض
نور ئي حکم دم درحال په خپل وزير وه

بيا بادشاه وزير ته وُوِ هحزوره — چه بهرام راته حاضر کړه تر سحره
بادشاه وُوِ که بهرام لا له چا راوست — انعامونه به زه ورکړم له سره زره
چه بهرام دلاور ووينم په سترګو — چه په شپه جنګونه کاندِ بي رهبره
بيا ئي و پوښتم لښکر دکوم عالم وه — آدم زاد وُو که پيريان ځما دلبره
دَ بهزاد دَ قتل حال به تر معلوم کړم — وه پواخي که لښکر وه برادره
په هر لوري حکم لاړ چه بهرام ګوريِ — سواره پلي ګرزيده تر بحر و بره
شبرنګ وُوِ خلقه په عقل خامه — چه بهرام په صحرا غواړي ده اوتره
دي عاشق د ګل اندامي په اوربل دي — عاشق ناست وي د معشوق له خاکستره
شهزاده بهرام به وِي په هغه ځاي کښ — چه باد بوي وله راوړي د يار له دره

شبرنګ و وچه مانړئ د ګل اندامي
يو سري شه ورسره تر مانړئ پوري
شهزاده بهرام ئې وليد کند آغوستي
ګل رنګ مخ ئې په هيرو سره سپيره وه
د مخ رنګ ئې هسي رنګ په بل شان وه
نور شبرنګ و دا بل څوک شهزاده نه دي
په ورو ورو ورته نژدي شه چه وګورم
په تحقيق ئې کړ معلوم چه شهزاده دي
په بادشاه باندي ئې زيري د بهرام کړ
بادشاه دور بشادنامي و غږولي
شاهانه آس و پوشاک ئې زرطبار کړه
ګل لښکر شبرنګ په مخ د مانړئ راوست
و داخه بلا لښکر راغي مانړئ ته
چا و دلته يو فقير وه ستا په درکښ
ګل اندامي ورته و دولتئ و بختي

په کوم ځاي ده څوک دې کړي راته اظهره
شهزاده بهرام ئې کوت نور البصره
د دونهي په غاړه ناست وه بي آثره
هر اندام ئې آلوده له خاکستره
چه شبرنګ ورته حيران شه برادره
يا خوخوار شوي د بهرام ښائسته بشره
په ښه شان سره ئې تيږ کړم تر نظره
نور په بيرته تر روان شه بي خبره
په دا ښهر کښ بهرام شته نازپروره
چه خبر شه په دا حال ځما دلبره
و وزير ته ئې و ورشه معتبره
ګل اندامه شوه خبر له شوروشره
له دي حال ما خبر کړئ زر تر زره
شهزاده بهرام هغه شه مفرره
ما ويل چه شهزاده دي نازپروره

شبرنګ مخ د شهزاده له هیرو پاک کړ — په سل ځل تر قربان شه مسکرره
بیائي غسل وله ورکړ سر تر پایَ — د بنائست شعلي ئي زیاتي شوي تر نمره
ګل اندامه ننداري ته وه ولاړه — د عشق سري لنبي ئي تللي له ځګره
په ژړلو ګل اندامي سترګي سري کړي — د بهرام میني له عقل کړه اوتره
په پهلنګ باندِ پرته لکه مرده وه — دا دَ عشق کارونه ګوره برادره
د فغفور بادشاه ترځايَ بهرام راغي — وُو په باغ کښ رنګارنګ پراته بستره

هغه شپه شوه په دا شان تیره **فیاض**
خوشحالي خندا هوس وُو تر سحره

صبحدم شه ملا الله اکبر کړ — نور بادشاه وزیرته دا رنګ خبر کړ
زه دیدن ته د بهرام شهزاده ځمَ — دَ بهرام دیدن وما ته خداي اختر کړ
آس سپاهیان وزیر ګل راته طیار کړه — نور وزیر ورته حاضر واړه لښکر کړ
غرض دا چه دَ بهرام په لور روان شه — او بهرام ته ئي قاصد وراندِ پیشتر کړ
چه بادشاه سره ملاقات لره راځینه — استقبال ته ئي بهرام روان زړه ور کړ
چه بادشاه او شهزاده سره یو ځاي شُو — ګویا نمر سپوږمۍ وُو باغ ئي منوّر کړ
یو د بل د خیریت خبري کړلي — په دیدن دیدن ئي یخ د زړګي سر کړ

بیا

| | |
|---|---|
| بیا بادشاه وِ راته حال د بهزاد وایه | په څه شان دِ د بهزاد خاوري لښکر کړ |
| یکتنها وې که لښکر هم در سره وه | چه دِ قطع د بهزاد باغاړي سر کړ |
| ستا لښکر څوک آدم زاد وُو که پیریان وُو | چه لښکر دِ د بهزاد زیرو زبر کړ |
| شهزاده وِ څما بل قسم لښکر دي | خو پټ ښه دي او نه نه لوي به ضرر کړ |
| خلقه به دِ دچین ترِ و لړزیږي | نهنګ به نه شي خوار و زار به هر بشر کړ |
| نور بادشاه وِ خواه مخواه ئي راڅرګند کړه | په ښه شان په ښه شوکت راته اظهر کړه |
| د شماس ویښته بهرام وسو په اور کښ | نور شماس ورته ښکاره ګوشه بشر کړ |
| شهزاده سو راته غوږ کیږده شماس | ته مِ وروري که حاضر دِ خپل لښکر کړ |

شماس لاړ شه په لښکر پسي **فیاض**
په ساعت کښ ئي لښکر خپل میسّر کړ

| | |
|---|---|
| یو ساعت پس د ضیفور لښکر ښکاره شه | نور دچین وکړي درست په نندار شه |
| په هوا ناري سوري د توپو دوند شه | درست جهان ئي په هیبت یوه ناره شه |
| تش دارو به خلاصیده کوئي به نه وي | مځ د زمکي په عالمو ګواره شه |
| دچین ښهر ئي تمام سره ګډوډ کړ | پلار له زوي زوي له پلار ویزاره شه |
| په ساعت کښ ئي قیامت ورباندِ راوست | ننداري نه هر سړي توبه کاره شه |

نور فغفور وِ روي دخداي لښكر قرار كړه — په رعيت م اوس آفتاب نيزه واره شه
نور بهرام وِ ماويل ښكاره ښه نه دي — اوس رعيّت دِ په فرياد په كوكاره شه
نورئي غږ كړ و شماس ته برقرار شه — بيا شماس هم ولښكر ته په ناره شه

د صيفور لښكر قرار بيا صف په صف شه
اي **فياضَ** د بهرام قوّت ښكاره شه

شهزاده په دا اميد كښ وه عالمه — خداي به ما له كُل اندامي كړي همدمه
آدميان پيريان لښكر ورسره ناست وه — خداي ئي مل وه ځكه چار ئي شوله سمه
په لښكر كښ ځاي په ځاي شو سرودونه — دبهرام لښكري ناستي وي بي‌غمه
خو آخر شبرنګ وزير مصلحت وكړ — خو به ناست يو په دا ځاي كښ خوښ خورمه
غرض دا چه عرض د چين بادشاه ته بويه — چه موږ خلاص كړه دبهرام واده له غمه
وزير لاس په نامه ودريده بادشاه ته — نور ئي وِوِ قبله‌ګاه صاحب كرمه
خود ظاهر دي د بهرام مطلب وتا ته — زه به څه قصه كومَ زيات وكمه
موږ خيښي غواړو له تا نه په ښه مينه — كه بادشاه خوښ آرزو كه مسلمه
په دا شان سره دوستي غواړو له تا نه — دا ثواب لا له زر راكړه تر يو دمه
بادشاه وِوِ اي وزيرَ ځما ورورَ — شهزاده بهرام مِ خوښ تر نور عالمه

په سل رنګ مې رضا که دي مې زوم شي ‎ ‎ بل به لوي شم تر عرب و تر عجمه
ګل اندامه په سر مسته حکم خپل کا ‎ ‎ وَس مې نه شي جواب نه باسم له فمه
لورخما په ویل نه راځي وزیرَ ‎ ‎ تفحّص بویه نور ما کړه مسلّمه
شبرنګ وِکه د بادشاه په دا رضا وِي ‎ ‎ شهزادګۍ د چا په خولي زه و پوښتمه
نور فغفور وِ ډیر دِ ښه وُوِ شبرنګَ ‎ ‎ شبرنګ وکړه د تدبیر بنا محکمه
شبرنګ وُوِ شهزاده ته چه بهرامَ ‎ ‎ ګُل اندامي له غوږ ولیږه اکرمه
هم له دي نه تفحص تحقیق پکار دي ‎ ‎ دَه ددي رضا په هرچا مقدمه
فغفور ډیر په تا راضي دي بې حسابَ ‎ ‎ مکر وایي دَخپل واک ده شیرین نمه
بهرام وِچه سراسیا به ولیږم زه ‎ ‎ ور سره هم روح افزا ښاپیرۍ سمه

هوښیاران په مصلحت کار کړي **فیاضَ**
ښکه کار ئې وِي خالي له پیچ وخمه

نور بهرام وِ سراسیا خوري وزدرومه ‎ ‎ ګُل اندامه خبر کړه خما له نومه
ورته وایه ستا د میني په اور سوي ‎ ‎ شهزاده بهرام راغلي دي له رومه
ستا په درکښ غومُده ملنګ فقیر وه ‎ ‎ ستا له وصلَ ناقرار دي ډیر محرومه
زه بهرام یم را لیکلي تر تا پوري ‎ ‎ ګُل اندامي وایه ستا رضا په کومه

شهزاده بهرام قبول کړه ګل اندامي — ناست د زړه ئي چاپېر ستا د زلفو لومه
د بهرام په سوي زړه باندِ نظر کړه — ستا د هجر په لنبو کښ شه سرګومه
نه جواب ترِ سراسیا خوري ذر راوړه — نه هوښیاره د زړه حال ئي کړه معلومه
سراسیا او روح افزا سهیلیٔ واړه — شوي رواني واړه دوي ددي ترِ بومه
په محل د ګل اندامي شوي داخلې — خنده روئي تلي هېڅوک نه وي مغمومه
لا په خوا وه ګل اندامه خبر شوي — چه به راشي سراسیا د یار له بومه
مشک عنبر ئي په محل وُو پوک وهلې — خوش بوئي ئي په هر لوري تله مضمومه
ځاي په ځاي مجلس کېږي په خوښو قسم — میلمستیا د سراسیا وه له هجومه
ګل اندامه سراسیا سره یو ځاي شوي — سهیلیٔ ورته ولاړي وي محکومه
ملاقات چه سره وشه پس له درنګ — ورته راغي ښه ناري خاص له عمومه

چه ناري ئي کړ تمام واوره **فیاض**
ښه مجلس ئي کړ آغاز نه وي مغمومه

یو ساعت سره خوشحال خندېدلي — بیائي داخبري مینځ ته واچولي
سراسیا وِ ګل اندامي بهرام سوزي — په ګریبان باندِ ئي اوښي بهیدلي
شپه او ورځ ئي هاي فراق درسِي روو شه — چه دِ زلفي په سپین مخ دِي غورېدلي

د تصویر په یو نظر په تامین شه
بهرام دا وِ نه غوږ کېږده گُل اندامي
گُل اندامي وِ ته پلار څما قبول کړه
گُل اندامي چه دا حال ورته معلوم کړه
دغه حال ئي و بهرام وته ظاهر کړه
بهرام وَوِ وصیفور ته څما ورورَ
بیا صیفور ورته ویل بهرامَ ورورَ
حکم ستا دي څما څه زه غلام ستا یم
سراسیا ئي په نکاح ورکړه فغفور ته
پس واده هم روح افزا شوه وصیفور ته
دغه پسَ د بهرام واده ئي جوړ کړه
گُل اندامه ئي کړه داخله په محل کښ
په اوربلـ باندِ ئي قط د کلو جوړ کړه
چه پیزوان ئي په سرو شوندو باندِ سور کړه
چه زیور جامي ئي واړه پرِ انبار کړي

چه دِ پریکړي د بهرام د زړګِ ولي
دي جواب غواړي له تا نه د چین گُلي
د بهرام خبري گُل دِي مبا منلي
سراسیا سهیلئِ واړه رخصت شولي
ښاپیرئِ ورته ولاړي و درېـدلي
گُل اندامي په دا شان ګرانه نیولي
سراسیا خور مِ وتاته دَه بخښلي
هرچه وایي واړه مونږ قبولي کړلي
په واده ئي نغاړي و غـږولي
ښاپیري ئي په واده کښ لوبېدلي
رنګارنګ جوړي زربښي رغېدلي
د سرو ټیک ئي په جبین ښغلي کولي
مرغلري پرِ د پاسَ حراو کړلي
خلقي ئي بي گُناهَ قتلولي
خلقي ئي ننداره ته و درېدلي

هرچا داوِ چه بیشکه حور العین دَه
په دنیا کښې له جنّت دَه راوتلي

خلوېښت ورځي ئي واده کاوه یارانو
هم بي شانَ توپخانې به خلاصیدلي

د بهرام د گل‌اندامي نکاح وشه
خلقي شوي کوراکور سره داخلي

په محل ئي د بهرام کړله داخله
د ښه خداي ثنا ئي ډيري درستولي

بیا ئي نیت د تلو د روم وکړ **فیاض**
د بهرام لښکري گُل سنبالیدلي

گُل‌اندامه شوه سوره لښکر طیار شه
آدمیان لښکر پیریان کوزنه رفتار شه

فغفور ډېر جوهر گوهر له لورسره کړه
خلویښت زره سهیلۍ لې خدمتگار شه

له فغفورَ په ژړا ژړا رخصت شوه
د گُل‌اندامي په ژړا ژړا رفتار شه

شهزاده بهرام رخصت شه له صیفورَ
په ژړا ژړا به یو د بل کنار شه

چه بهرام په ولایت د روم داخل شه
وشبرنګ ونه گویا په دا گفتار شه

چه ورخه بادشاه ځما په حال خبر کړه
شبرنګ زر ورځني وړاندِ په تلوار شه

په کشور باندِ ئي زيري د ښادئ کړ
په کشور بادشاه جهان لکه گلزار شه

دِ ئي شاهَ مبارک شه غوږ پرِ کیږده
پس له دي خوشحال خندان شه اوس دِ وار شه

په دباؤ په بادشاهت کښې ښه مقیم شوي
درښکاره چه دَ بهرام ښائسته رخسار شه

اوس بې شکه دِ له زړه نه کړه غم لرې　　چاچه تا ته عکس کړ هغه اوس خوار شه

استقبال ته ئې تمام جهان روان شه　　بادشاه وُوِ شکر شکر بخت مِ یار شه

چه نژدې بهرام له راغې په ژړا شه　　وِ ئې شکر رابنکاره چه دِ دیدار شه

وِ په خبر راغلې اوس نوې مسافر　　په راتله دِ خما زړه رنځور بیدار شه

پلار او زوې په ژړا سره یوځای شو　　دواړه یو تر بله غېږ او هم کنار شه

د بهرام سترگې ئې یو تر بله ښکل کړې　　تا به وِ چه په بادشاه باندِ بهار شه

د بهرام واده ئې سر دوباره جوړ کړ　　خلوېښت شپې ورځې په روم کښ دندوکار شه

نور ئې تاج د بادشاهۍ بهرام ته ورکړ　　د ښه خدای په عبادت کوښه کنار شه

هسې رنگ عدالت بهرام را واخست　　چه عاجز سرې خوشحال دنیادار خوار شه

په هغه ملک ئې نامه خوره شوه ډېره　　ناگمانه پرِ د موت لښه اظهار شه

خدای رحم هم پرِ ته وکړې رحیم　　هرچه لاړل په نصیب ئې پاک دیدار شه

چه ملکونه ئې آباد په عدالت کړه　　بادشاهت ئې ښائسته لکه گلزار شه

گل اندامه شهزاده سره یوځای وُو　　محبّت ئې ژبات ترحد لیل و نهار شه

د بهرام د زړه مقصود سر شه **فیاض**
تماشگیر د گل اندامې د رخسار شه

انتخاب

# د دیوان د عبدالرحمان

مهمند ساکن د بهادر کلي

و هغو وته چه خداي پخپله وښود

څه حاجت ئي د رحمان په گفتګوي شي

# انتخاب

## د دیوان د عبدالرحمان

کوره هسي کردګار دي رب ځما | چه صاحب د کُل اختیار دي رب ځما

هَمَکِي بزرګواران چه څوک ئي وايي | تر همهٔ بزرګوار دي رب ځما

نه ئي هیڅ حاجت په چا باندِ موقوف دي | نه د هیچا منت بار دي رب ځما

له نیستئ ئي د هستئ صورت پیدا کړ | هسي رنګ پروردګار دي رب ځما

هم صانع دي د جملهٔ مصنوعاتو | هم سامع د هر ګفتار دي رب ځما

چه ئي هیچرې نه مثل نه مثال شته | د هغو عطرو عطار دي رب ځما

هر تعمیر چه د دنیا او د عقبیٰ دي | د همه وارو معمار دي رب ځما

خواننده د نا نویسو صحیفو دی | داننده د هر اسرار دي رب ځما

که ظاهر دي که باطن دي که مابین دي | له همهٔ خبردار دي رب ځما

که پیدا که پوشیده دي که اوسط دي
په همه و وقوف دار دي رب ځما

شریک نه لري په خپلي بادشاهئ کښ
بي شریک شهریار دي رب ځما

هسي نه چه واحدي ئي ده له عجزَ
په واحد وجود بسیار دي رب ځما

حاجت نه لري د هیچا و یاريِ ته
له هغو سره چه یار دي رب ځما

څه حاجت دي چه وبل خوا ته ئي غوارم
په خپل کور کښ همکنار دي رب ځما

هیڅ تغییر و تبدیل نه لري رحمانَ
تل ترتلَ برقرار دي رب ځما

که نماښام تر ستونيِ ښکته کړي حلوا
صبا خواست کوي له خدایَ د ښوروا

په هیڅ حال کښ دِ قرار و صبر نه شي
لیوني کړي دیر حرص دیري هوا

تمام عمر تر آشنا تر عزیز پوري
یوي کیدې مختورن کړي هم رسوا

چه په خپلي رسوایئَ دِ پروا نشته
نور به څه کړي په جهان د چا پروا

چه د نفس د پاره لاس وچا ته نسي
دا زحمت له خدایَ غواړي که دوا

نفس بي شمارَ عالم پري بیست وکوهيِ نه
خداي دِ نه کا نابینا د چا پیشوا

په روا په ناروا کله پوهیږي
وچارپاي ته څه روا څه ناروا

چارپایان که غوبږ و سترګي لري څه شو
په معنیٰ کښ نابینا دي ناشنوا

زه رحمان له هغه علمه پناه غوارم
چه له دینه له مذهبه وي سوا

دوباره دِ راتله نشته په دنیا | نن دِ وار دي که دروغ کړې که رښتیا
هره چارچه تروقت تیره شي عنقا شي | عنقا نه دي په دام نښتي د هیچا
ژوږخ تیري اوبه بیرته نه جاروُوزي | نه جاروُوزي تیر ساعت په بیرته بیا
تیر ساعت په مثال مړي د لحد دي | مړ چا نه دي ژوندي کړي بیه ژړا
که مقصود لري تلوار کړه وقت کوتاه دي | غره مه شه د دي عمر په بقا
هره نښه چه صحیح کېږي په زړه کښې | په غرور به هغه نښه کړي خطا
په امید امید ئي خلق نا امید کړه | د ایّام له مکره مه شه بي‌پروا
چه د مرګ په تماچه دِ شي خوله ماته | ترو په ماته خوله به څه کوي ثنا
وِیر ژړلي ارنیني چه وینا وایي | تا نه وایي که پوهیږي په وینا
هلک نه يي چه په زور دِ څوک تعلیم کا | هم عاقل يي هم بالغ يي هم دانا
په عمل د نیکو بدو فهم وکړه | چه په دا کښې دِ بهبود دي که په دا
سر دننه په ګریوان کړه ستړګي روښي | دېر په پورته پورته مه څه سرهوا
سرهوا سرهوا مه څه و آسمان ته | ته په اصل کښې له زمکي يي پیدا

د عمل په خاې به دا پوښتنه نه وي — چه نه زوي یا نمسي یي د فلانا
په خپل خان ښیګړه وکړه غوره مه شه — په ښیګړه د آدي او د بابا
هغه ناوي چه په خان ښائسته نه وي — خوک ئي خه کوي ښائست د مور و نیا
دا خبره زه و خان ته کړم اي یارَ — دلګیر مه شه که م نوم واخست دِ ستا
نوم د ستا او د بل اخلم خان ته وایم — نه م کار نه م غرض شته په بل چا
که م خاې د دې غمونو وي په زړه کښ — ما به خه لره کوله دا ویښا

چه د مرک سختئِ خواريِ دِ په خوا وي
اي رحمانَ ولې نه مري لا پخوا

که خوک یار په جهان غواړي یار دي دا — یار دي دا که د جهان سنګار دي دا
خیال د زلفو ئي خما تر زړه چاپیر شه — یا تر ګنج چاپیر شوي مار دي دا
دا جهان دي خداي له عشقَ پیدا کړي — د جمله وُ مخلوقاتو پلار دي دا
تر عشق غوره بل خه کار په جهان نشته — تر همه کارونو غوره کار دي دا
بل بلبل به د ګل نوم آخستي نه وه — که خبر وي چه ګل نه دي خار دي دا
بیا راتله ودي جهان ته بل وار نشته — بلَ وار نشته بل وار نشته وار دي دا
د حباب عمر دِ وګوره چه خه دي — که خوک شمار کاندِ د عمر شمار دي دا

د مجنون صورت په زړه کړه رحمان ګوره
ستا په عشق کښې هسې خوار و زار دې دا

هيڅ ثابته نه کړه چا د دې دنيا وفا
واړه مينې کاندِ بې وفا په دا دنيا

هر څوک چه دعوې په دا دنيا کا د خپلوئِ
واړه باطل وايي دنيا نه دَه د هيچا

دا فلک کلال دې سازول و ماتول کا
ديوئ ما و تا غندِ پيدا کړه هم فنا

هر سنګ و کلوخ چه څرګنديږي د دې دهر
واړه ګکرئِ دِي څوک د شاه څوک د ګدا

دام دِ هيڅوک نه بږدي د دنيا و رهګذر ته
ښکار به وکړي نه شي د سيمرغ و د عنقا

هر څوک چه له دې فانِي نفس وابستګي کا
نه به شي تېرلي په زنځير سره هوا

ماه دې که آفتاب دې عاقبت واړه خراب دِي
ګل که هميشه وِي هسې نه تر ابدا

مه دروهه رحمان په خلاف د دانايانو
مينه د دنيا پسندلي نه دَه هيڅ دانا

هوښيار مه ګڼره هوښيار د دې دنيا
بې وقوف دي وقوف دار د دې دنيا

روښنائِي په هغو زړونو دَه حرامه
چه پرِ کښېنِي ګرد غبار د دې دنيا

پوچ ګوئِ دَه چه ئې اهل دَ دنيا کا
هر کلام و هر ګفتار د دې دنيا

د طفلانو په څير واړه خاکبازِي کړي
هر چه کاندِ کاروبار د دې دنيا

واړه ډکي خولي د پيو هلکان ږي | کارديده و پخته کار د دي دنيا
هميشه به بي وخوف او بي شعور وي | چه مخمور وي په خمار د دي دنيا
د شرابو هم لا همره مستي نه وي | لکه مست وي خمر خوار د دي دنيا
هر بيمار لره دارو په جهان شته دي | دارو نه لري بيمار د دي دنيا
د هر سوي علاج وشي په جهان کښ | مګر سوي په شرار د دي دنيا
هرچه واچوي و اور ته واړه سوزي | موړ به نه شي طلبګار د دي دنيا
ګرفتار ئي هميشه په غم کښ ډوب وي | هيڅوک مه شه ګرفتار د دي دنيا
ټل به پروت وي په ظلمت و په تورتم کښ | چه اسير وي په کفّار د دي دنيا
په مسلمو کښ خاصه مسلم هغه دي | چه ئي وشلاوه زنار د دي دنيا
تن ئي پاتي شي بي سر سر ئي لاړ شي | سردار کله دي سردار د دي دنيا
زوئي لونړه يتيمان کا خني دروي | بي وفا دي مور و پلار د دي دنيا
هميشه به ئي يو پنډ د غم په سر وي | چه په سر ئي وي دستار د دي دنيا
واړه غم دي که ئي پيري که ئي پلوري | نور څه نشته په بازار د دي دنيا
هګي واړه تګان دي تګي کاندي | فروشنده و خريدار د دي دنيا
په دنيا به مينه نه کاندي هيڅوري | چه خبر وي په اضرار د دي دنيا

چه نظر د چا په دین و په ایمان ږي
هغه نه کا انتظار د دي دنیا

لوي هلک يئ همه واړه مکاران دي
څه وفا دَه په مکار د دي دنیا

آشنایان يئ همه واړه اعیاران دي
یار دي چري په دیار د دي دنیا

چه پیدا شي همګي واړه فنا شي
راشه وګوره ناتار د دي دنیا

چه وېرېږي له کوږي او له ګړنګ
هغه نه دروځي په لار د دي دنیا

هر سړي لره چه ورشي ځني درومي
ما لیدلي دي رفتار د دي دنیا

په یوه ګړيځ بهار وي بیا خزان شي
بقا نه لري بهار د دي دنیا

که هزار هزار پښتيځ ورته په کېږدي
بې بنیادَ دي دیوار د دي دنیا

که د اوسپنو حصارَ ترځان چاپېر کړي
نبینبه وګڼړه حصار د دي دنیا

لکه سوري د آفتاب په مخ کښ ګرزي
نشته هیچري قرار د دي دنیا

هیڅ ګمان د بهتريځ ور باندِ مه کړه
کهتري دَه وار په وار د دي دنیا

بې مقراضَ غوڅيږي د سړي عمر
هم دا لیل وهم نهار د دي دنیا

پس له مرګَ به حساب له سري غوښت شي
په انداز و په مقدار د دي دنیا

عاقبت خو به یو موټي شي د خاورو
ګلعذار و ګل رخسار د دي دنیا

برابر به له ګدايَ سره پیاځي
شهزاده و شهریار د دي دنیا

پاس به داغ وِي د لئيم په تندر باندِ — هر درم و هر دينار د دي دنيا
د قانع تر قناعتَ صدقه شه — هم دنيا هم دنيادار د دي دنيا
پس له مرگَ به هغه واړه مظلوم وِي — ظالمان و ستمگار د دي دنيا
تر قيامتَ دغه لس اودغه شل وِي — پوره نه کړ هيچا شمار د دي دنيا
چه ايام پرِ د کفن د غسل ور شي — بي پردي شي پرده‌دار د دي دنيا
په تخته باندِ بيرون شي له حجابَ — شرمناک او شرمسار د دي دنيا
له هر چا په پيغمبر غځه ده ديره — که غځه قرب دي يا وقار د دي دنيا

يو فساد به ئې بيان په **رحمان** نه شي
فسادونه دي بسيار د دي دنيا

هغو بيامُوند سعادت په دا دنيا — چه ئې وکړ قناعت په دا دنيا
نه ملکونه د سليمان په هزار کالَ — نه يوه گړيءُ طاعت په دا دنيا
يو نفس د خداي په يادو اولي تر دي — نه د درست جهان دولت په دا دنيا
په دنيا کښ لوټ هغو عالمو وکړ — چه ئې وکړ عبادت په دا دنيا
که نعمت دي خو طاعت او عبادت دي — گنزِ نښته بل نعمت په دا دنيا
که محنت که مشقت دي خو دين دي — پکار نه دي بل محنت په دا دنيا

يي له.

بې له خدایَ هر چه دِي واړه فاني دِي
که لذّت دي که زینت په دا دنیا

که بادشاه وِي آخر خاورو له به دروِمي
څه عزّت دي څه حرمت په دا دنیا

له هغه به زیات نادان په جهان نه وِي
هر چه غواړي فراغت په دا دنیا

ته چه څو زِنَتَ فرصت په دنیا غواړي
چا موندلي دي فرصت په دا دنیا

عمارت په سر د ریګِ روان کاندِ
هر چه کاندِ عمارت په دا دنیا

د مستانو تر لغزشَ څه کم نه دي
د سړي استقامت په دا دنیا

هر ژوندي چه د مرده په تبر ورشي
بس دي همره نصیحت په دا دنیا

په روانو اوبو ورشه عمر ګوره
ډېر دي همره اشارت په دا دنیا

دا پاخه پاخه سرایونه محلونه
څو به وران شي عاقبت په دا دنیا

وبړي ستوري د آسمان څه هسي نه دِي
چه څوک پریږدِي سلامت په دا دنیا

هر چه راشي همه واړه څني دروِمي
مسافر دي هر صورت په دا دنیا

ریاضت په قیامت نه شي مرد هغه دي
چه يې وکړ ریاضت په دا دنیا

هم په دا خوي وخصلت به صبا پاڅي
خداي څوک مه کړه بد خصلت په دا دنیا

هم هغه به يې خرمن وِي پس له مرګ
هر چه کاندِ زراعت په دا دنیا

که هغه جهان په دا کښې لیدي نه شي
زه يې وینم علامت په دا دنیا

پۀ قیامت بۀ پښه توبه ځیله نه شي
ما لیدلي دي قیامت پۀ دا دنیا

امانت بۀ د لحد پۀ میان کښ پروت ږي
هر چه اوړي امانت پۀ دا دنیا

نیک عمل حضور جنت دي طاعت بۀ یه
چه حاصل کا ښوک جنت پۀ دا دنیا

نیک کردار هم نیک عمل هم نیک خیونه
هم جنت دي هم راحت پۀ دا دنیا

ضدیتٌ د سړي عمر پۀ عذاب کا
بکار نه دي ضدیت پۀ دا دنیا

لاس پۀ سر پۀ سینه ایږدي و هرچا ته
هم دغه دي شرافت پۀ دا دنیا

که بلنده مرتبه د چا بکار وِي
لوي مقام دي عدالت پۀ دا دنیا

بل ارمان بۀ له جهانه یوړ نه شي
مگر مهر محبّت پۀ دا دنیا

د هغه جهان سودا واړه دلي دَه
که ښوک کا ندِ تجارت پۀ دا دنیا

که طالع د سړي نه وِي جاروتلي
هیڅ پټ نه دي حقیقت پۀ دا دنیا

نیک له نیکو سره بۀ یه بد له بدو
که ښوک غواړي ولایت پۀ دا دنیا

ولایت دي خداي هغو لره ورکړي
چه ئي وړک کړ سکونت پۀ دا دنیا

که تمامه دنیا واړه سره یو شي
نور بۀ نه کا ځِل قسمت پۀ دا دنیا

که ښوک مرد دي خو هغه دي پۀ دنیا کښ
هر چه نه لري حاجت پۀ دا دنیا

چه رغبت ئي د جمله خطاؤ سر دی
ښوک بۀ څه کا ندِ رغبت پۀ دا دنیا

په رحمان بانډ دا عمر هسې تير سشه
لکه تير شي يو ساعت په دا دنيا

ښه ده ښه ده دا دنيا
چه توښه ده د عقبا

مذمت د دنيا مه کړ
واوره پند کړه دا دنيا

د دنيا په بازار کيږي
د هغه جهان سودا

په دنيا کښې ډير حکمت دي
پر پوهيږي حکما

که نر سر يې صدقه کړي
رفع دفع کړي بلا

که عليم لره يې ورکړي
عليم دوست کا په هوا

که په اور بانډ يې کيږدي
بوي د عودو کړي پيدا

که يې توي کړي په صحرا کښې
بنا يسته کا نډ صحرا

که يې نذر کړي د پيرته
خوشحال دروې په خندا

خواوندي دي په دنيا کښې
باد دي د په دعا

د حاتم په خير د ستايې
خطاب درکړي د سخا

سخي هر يو دوست دخداي دي
وَلَوْ كَانَ فَاسِقًا

هر بخيل د خداي دښمن دي
وَلَوْ كَانَ زَاهِدًا

دنیا کښت د آخرت دي — دا خبره دَه رښتیا
د دنیا طالبان ډېر دي — که يې مومي څوک له چا
ولي مرد په کښې هغه دي — چه سخي وي هم پارسا
په دنیا کښې بدي نشته — که بدي نه وي له تا
دنیا بحر دي بهیږي — آئینه خُندِ صفا
خپل خپل مخ په کښې ليده شي — که څوک زشت دي که زيبا
هم خطر په کښې ډېر شته — هم گوهر دي بي بها
وفادار لره وفا شوه — جفاکار لره جفا
له يوه مخَ يې درد وي — له بل مخَ يې دوا
چرته خوند کا بدِ د زهرو — چرته خوند کا د حلوا
کار همه واړه موقوف دي — د سړي په مدعا
سالکان دِ نندارچي شي — د خپل ځان په تماشا
هر چه کا هغه به مومي — دنيا ځاي دي د جزا
لکه دي هسي به پاڅي — که نادان وي که دانا
که دانا يې وپوهيږه — په روا په ناروا

فتوي ولسه په مخ تېر  لېږي منت کړه په تقوا
دنیا نه ګډه واړه دین دي  چه ژه نشي دي سوا
وطاعت ر ته ولاړ دي  همیشه تړلي ملا
له حرامو ئې پرهېزوي  مشغول دي په پنځ بنا
کلمه ئې دي قبوله  هم په جهر په اخفا
د دنیا د کار د پاره  فرض نمونځ کاندې قضا
هم صائم د رمضان دي  هم زکوٰة کاندې ادا
که ئې توان د حج رسېږي  حج هم وکړي پسی بیا
دا پنځه بنا د دین دي  چه بیان ئې وکړ ما
چه ئې بون په دا طریق ږي  هغه کس دي اولیا
که ئې مال د دنیا ډېر ږي  هیڅ دې نه کاندې پروا
دنیا بده د هغو ده  چه ئې کسب دي ریا
یا ئې ټوله کا په ظلم  یا د خمرو په سودا
یا ئې ور کا په شرابو  یا ئې ور کا په زنا
یا ناحق خونونه کاندې  یا مالونه خوري د چا

عبادت کا په ځان فرض د بادشاه د امرا
حق باطل کا باطل حق کا په سبب د روي ریا
نه ئې ویره وي له خدایه نه ئې شرم نه حیا
د بوي کیږي د پاره هزار خوني کا بیدیا
همیشه ئې له ستمه واره خلق وي په غوغا
کوش وهوش ئې هرګز نه وي د مظلومو په ژړا
د فرعون په څیر په ناست وي بي پروا و کبریا
بت خاني وته ئې مخ وي و مسجد وته ئې شا
اختلاط کا له بدانو له نیکانو وي سوا
هیڅ ئې نه وي په خاطر کښ تولّا و تبرّا

د رحمان ته پیښه مه کړي
خدایه هسي رنګ بلا

چه نظر کړم په قسمت او په نصیب را نه هیڅ شي څل تلاش و څل ترتیب
مګر خود پخپله خدای د چا طبیب شي ګنړه نشته په جهان کښ بل طبیب
را خبر کنه دي سود و زیان د رقیبانو که خدای نه کاندِ څل یار د چا رقیب

چه څوک یار د چا رقیب شي مثال دا دي
لکه څوک چه په وطن کښې شي غریب

چه غریب شي په وطن کښې فرق ئې نه دي
که فرسنګ ئې دي تر میانه که جریب

ما په عشق کښې هیڅ حاصل نه کړه بې غمه
هرچه وائې وائې بنه وائې ادیب

دښمن هم د سړي کله دوست شي
دوستي نه کا د رحمان سره حبیب

که مې وشي له دلبره ملاقات
پا به نه څم له دې دره په حیات

پس له دې مې د استرګو نه خدایه نصیب کا
په دا درکښې که حیات وي که ممات

بنائې دا که زه څپل یار ونه سجده کړم
هغه یار څما قبله دې د حاجات

د څپل یار تر لعلو لبو به ئې ځار کړم
که شکري وي که قند وي که نبات

دا څما د یار جلوه ده چه لیده شي
لکه نمر په صومعه د سومنات

تر ما لا په دلبرانو ډیر مین دي
چه خبر کړي د کشف و کرامات

د ریا له زاهدانو څما توبه ده
چه ئې کاندي څوک په رسم و په عادات

په ورځ پند و نصیحت وائي ویل ته
په شپه ناست وي د مغان په خرابات

دین ئې دام دي د دنیا په لار کښې ایښې
پرې را آړوي وحشیان د مخلوقات

د هغو په لور ئې سترګې دي ختلي
چه په لاس ئې سرمایه وي یا زکوٰت

زه رحمان له هسې اهلٔ پناه غواړم
هرچه لاف کا په خلاف د مقامات

د وصال شپه م بدله په بېلتون شوه الغیاث
د قیامت خوارِي را پېښه په ژوندون شوه الغیاث

ما لا طمع د وصال د نعمتونو تر کوله
ناګهان پیاله نسکوره د ګردون شوه الغیاث

هغه چار چه م په لاس وَه زه پرِ نه دم پوهېدلي
اوس چه پوه شوم له اختیارٕ م بیرون شوه الغیاث

د وصال په طمع طوق د جدائي شه را په غاړه
هغه طمع چه شفا وَه اوس طاعون شوه الغیاث

په حکمت په عقل بېتیي د عشق څوک آختی نه شي
په دا کار کښې ما ته ملا د افلاطون شوه الغیاث

ما رحمان د یار وصال په آسانئٔ موندلي نه دي
زردروئٔ م سرخروئٔ په جګرخون شوه الغیاث

چه برهم کا عاشقي د چا مزاج
حکیمان ئې درمانده شي په علاج

په آشنا پسې تل ژاړي په دوه سترګو
د اوبو په ځای خوناب کاندِ اخراج

دواړه لاس ئې وِي له دواړو کونو ولي
ډوب رِي تل د عاشقئٔ په امواج

په هغو کښې چه څه بوي د عاشقئٔ وِي
په کښې نه رِي بوي د رسم و د رواج

ابراهیم ادهم څه هسې نادان نه وه
چه نظر ئې یا په تخت وه یا په تاج

مجنون هسې رنګ مین په لیلي نه وه
چه په لوزو ئې موقوف وه احتیاج

ليونتوب له ليونو نه تلوني نه دي　　که يې راج په خونه ورشي که تاراج

که يې سر لکه منصور ځندِ په دار شي
دغه دار دي **رحمان** وته معراج

په طلب د ماهرويانو سرګردان دي ځما روح　　لکه باد د ګل په بوي پريشان دي ځما روح
ستا د حسن د آفتاب ته چه سپارلي ځان شبنم دي　　لکه صبح د ژړا په ځاي خندان دي ځما روح
چه م ستا د جمال عکس دي ليدلي په ځل ځان دي　　هم په دا د آئينې په څير حيران دي ځما روح
ستا د مخ د آئينې له برکتَ ځما جانَ　　هميشه لکه طوطي هسي ګويان دي ځما روح
لکه رنګ د ميو نابو چه ليده شي په بنينه کښ　　هسي رنګ په ضعيف تن کښ نمايان دي ځما روح
منتظر يم د وصال د ګلستان ته تل تر تلَ　　سر تر پايَ د شبنم په څير چشمان دي ځما روح
چه حاصله م له حسنَ روښنائي شوه په طلب کښ　　شپه و ورځ لکه آفتاب په لار روان دي ځما روح

ستا په زلفو په رخسار پسي **رحمان** شه بې وطن
مسافر د هندوستان و خراسان دي ځما روح

چه پيدا شو ستا چشمان دا هسي شوخ　　نور به نه ږي مردمان دا هسي شوخ
کږ زلفان کږ ابروان لکه چه ستا ږي　　نه لرم شته نه ماران دا هسي شوخ
د غمزه شوخ شته ږي په جهان کښ　　ولې نه لکه هجران دا هسي شوخ

مکر دیو ږي چه بي غم وي په هجران کښ
ګنړه نه به وي انسان دا هسي شوخ

دا فتنې او فسادونه به وُو چري
که پیدا نه وي آسمان دا هسي شوخ

د اشنا له غمه زړه د آشنا نه چوي
آفریده کړ خدای جهان دا هسي شوخ

چه یوسف ئې د دنیا په متاع ورکړ
پیدا مه شه بل کاروان دا هسي شوخ

چه بوسه له یارَ غواړي بي ادب
خدایَ دِ نه کانډِ **رحمان** دا هسي شوخ

له اغیار سره خندا ښه پکار نه دَ
له اغیار سره سودا ښه پکار نه دَ

سل یاریږ د یوه یار دیاره کیږي
آشنائي د هر اشنا ښه پکار نه دَ

هر بلبل به دِ ثنا کاکه نه ګل شي
په چل ښان چله ثنا ښه پکار نه دَ

عشق د بوي په خیر په پټه خوله ښرګندږي
په دا چارو کښ غوغا ښه پکار نه دَ

د عشق درد واړه عاشق لره راحت دي
د دي هسي رنځ دوا ښه پکار نه دَ

بد له بدو سره بویه نیک له نیکو
د جفا په ښاي وفا ښه پکار نه دَ

عاشقِي حرص و هوا دِيا سره لري
د بیمار په ښان هوا ښه پکار نه دَ

عاشقِي یو نادر کار دي په جهان کښ
ولي بي خدایَ سودا ښه پکار نه دَ

که ئُي کرم هم ئي هیڅ نه کښزم سوکند دي
وابستګي د دي دنیا ښه پکار نه دَ

د دنیا مینه بیکاره آوریدي شي — چه ئې ولیده رښتیا څه پکار نه دَ

که رحمان په جهان ډیر پایم دلبرَ
زندګي څما بي تا څه پکار نه دَ

څه شو که خاورشي په ستا د عشق له آه سردَ — ستا څما له میني خلقه واره خبر دَ
هیڅوک دې به خوله د عاشقي ګلاونه وته کا — کله هم پټیږي وچي شونډي ګونه زردَ
اهل د دنیا واړه نامرد دي رنګ ئې درک شه — خدای دې ملاقات د هیچا نه کا له نامردَ
کله بي دردانو لره زړه د چاورد وي — زه به صادقه کړم سل بي درد تر اهلِ دردَ
بې دِ ستا د عشق د شهیدانو له خاک دانَ — کله زرغونیږي سره لاله له هرَ ګردَ

یو خوشحال یو کړم سل خټک نور په طبیعت کښ
څار شه د رحمان سره بني له یوه فردَ

څوک دِ راکانه قسم په کردګار — که درم لرم په کور کښ یا دینار
زه دینار و درم نه لرم په کور کښ — ولي نور عالم م بولي دنیا دار
هم په دا چه نه له څای حیرته خوښم — نه د هیڅ یوه مخلوق یم منت یار
نه م بنګته ملک لیدلي دي نه پورته — خبر نه یم په یمین و په یسار
آب و خور لکه ګیاه په څائ را رسي — په چل کور کښ م سکون دي هم رفتار

لکه ونه مستقیم په خپل مکان یم — که خزان را باندې راشي که بهار
توکل مې لاس پښې سره کړه په نکریزو — چه په ځای يې کښېنولي يم قرار
چه ځما په باب کښې کښلي دي را رسي — که رحمت دی که زحمت دي وار په وار
چه مژده هزار قومونه يې پیدا کړل — مربّي مې دی هغه پروردګار
کار همه په اراده د خدای موقوف دي — هیڅ موقوف نه دي د چا په انتظار

غم به هیچري د نه کا په دنیا کښې
که څه کیږي د **رحمان** په اختیار

په پیريئ کښې چه هوس د مي ناب کړي — بیهوده ګمان په صبح د مهتاب کړي
بي طاقت عنایت له خدایه غواړي — د عتاب په ځای امید د ثواب کړي
دانسته ګناه کوي توبې وکا دي — لکه بُت هسي په غټو سترګو خواب کړي
په هغو غوږو چه ذکر د خدای آوري — بیا سماع په هغو غوږو د رباب کړي
په هغو شونډو چه حمد و ثنا وايي — هم هغه شونډي بیا ډوبي په شراب کړي
علم وکړي هیڅ عمل ور باندې نه کړي — لکه طفل هسي لوبي په کتاب کړي
په شپه پروت يي د مغان په میخانه کښې — او د ورځې مخ په لوري د محراب کړي
تمام عمر د دنیا په طلب ګرزي — بیا د خدای په طالبانو ځان حساب کړي

له خالقه

له خالقَ دِ نه شرم نه حجاب وِي
له رحمانَ کوبنه وسي حجاب گر

که بې شاېَ زرکي نه وکبني آواز
سکه له دې خبري هسي معلوميږي
د منصور وحال ته کوره حال يې څه شه
دريغَ دريغَ که ورسيتي عقل ډوبني وي
نيک عمل د عاقلانو نيک فرزند دي
چه فرزند يې شراب خور و قمارباز شي
خداي له هسي ناهرزادَ امان وکړه

نه صياد څښي خبر وِي نه شهباز
چه خپل سوت دي هر سړي لره غماز
خداي دِ فاش د هيچا نه کاندِ پټ راز
د انجام خيري نه شي په آغاز
خداي څوک مه کړه شرابخور و قمارباز
نور يې کانړي شي د پلار په خونه ساز
چه بې دين بې ديانت شي بې نماز

چه منکر پر اعتراض کولي نه شي
دا دِ شعر دي رحمانَ که اعجاز

که څوک فخر کا په ننگ و په ناموس
که آغوستي يې زري جامي دي څه شو
که يې تاج وِي په سر ابني غزا وشوه
نه يې فهم فراست وِي نه يې عقل

دا په عشق کښي نه ارزيږي يو فلوس
کنړه يو مرغ زرين دي يا طاوس
په نظر ښما هدهد دي يا خروس
خالي نقش لکه عکس د معکوس

نه يې مغز نه دانه وي په خرمن کښې — عبث هسي خالي لوني په سر بوس

د مجاز له يار طمع د خير مه کړه — تمامي شرّ و شدّت دي دَ الوس

وداني يې همه واړه ويراني دَه — راشه وګوره مانړيِ د دقيانوس

که څما په ګفتګو کښې زيات وکم وي — څوک دِ ګڼي کا په دا ښهر کښې جاسوس

ساقي جام د باده راوړه چه بېخود شم — خداي څوک مه کړه په خوديُ کښې محبوس

که څوک وغواړي تمامه دنيا واړه — څما يار ګنډِ به نه وي بل عروس

رحمان حسن د يار وينم په پرده کښې — نه پټيږي نور د شمع په فانوس

که نه نه کړي په بل چا باندِ غرض — بل به نه کاندِ په تا باندِ غرض

که ګدا د بل په غولي غرض نه کړي — سپي به نه کړ په ګدا باندِ غرض

په ساحل کښتيُ د هيچا نه ډوبيږي — که څوک نه کا په دريا باندِ غرض

خلوتيان په خپل خلوت کښې فراغت دي — د رسوا دي په رسوا باندِ غرض

دا دنيا په احمقانو دَه ودانه — دانا نه کا په دنيا باندِ غرض

زه رحمان د عشق په درد کښې هسي خوښ يم — چه م نشته په دوا باندِ غرض

طمع مه کړه په دنیا کښې د نشاط
بیا به نه مومي نشاط په دا بساط

لکه راغلي بیا به هسې ځني درومي
دا جهان د رهروانو دي رباط

تر هر گام لاندې کوهي دي ددې دهر
ایښي پښه هر قدم په احتیاط

د دانا وته پیدا دا جهان ښکاریږي
هم جنت وهم دوزخ وهم صراط

په عاشق به هیڅ دښمنت د رقیب نه وه
که یې نه کړي له خوبانو اختلاط

له کمزات بې دیانت بې نمازه
طمع مه کړه د نیکۍ د یو قیراط

غم د ترکو تر رحمان هسې چاپیر شه
لکه دسکڼي جامه په چا خیاط

اوس که کله دې پاخه وايي واعظ
هر چه وايي واړه ښه وايي واعظ

دي چه ما له خپل یار لري باسي
نور به څه راته اومه وايي واعظ

جدا رواته ځما له یار ډیر مشکل دي
زبانی ښه له دوباره وايي واعظ

په خوږو پسته خبرو یې غلط شوې
دا خوارده خوارده ترخه وايي واعظ

څوک به څه باور د ده په نصیحت کا
چه له یار جدا رواته وايي واعظ

زه بې عشق بل یو کار کولی نه شم
ډیر له عشق تښتیده وايي واعظ

اعتبار یې په نرمۍ په گرمۍ مه کړه
دا توده توده ساړه وايي واعظ

آورید ذنکي ئې **رحمان** د ویل نه یم
بهتر دا دي چه نور نه وایي واعظ

په تندِي چه آتش بل کړ مدام شمعِ
څکه بیامونده له خلقو آرام شمعِ

په انوار ئې منوّر اهل ابصار شوُ
لا به کله ږشي سنکاره د انعام شمعِ

پتنګان ئې لور په لور تر مخ څرخیږي
څکه نه کوي په سول کښې آرام شمعِ

وسیزه نه ځان خما په شعله باندِ
کړ پتنګ ته په رموز کښې کلام شمعِ

ستا مجلس د خاص الخاصو سرفرازو
د **رحمان** په څیر نه موږي هر عام شمعِ

هر یو ګلِ د ستا د باغ روښن تر دي ترچراغ
روښن تر دي ترچراغ هر یو ګل د ستا د باغ

ستا د باغ و د بنړ زاغ په نظر خما هماي دي
په نظر خما هماي دي ستا د باغ و د بنړ زاغ

د دردمند و په دماغ ستا د در خاوري عنبر دي
ستا د در خاوري عنبر دي د دردمندو په دماغ

د عاشق د ښېر داغ په آسمان د عشق آفتاب دي
په آسمان د عشق آفتاب دی د عاشق د ښېر داغ

د **رحمان** د زړه فراغ نه شي نه ږشي بي خوبانو
نه شي نه ږشي بي خوبانو د **رحمان** د زړه فراغ

ورځ چه بده ږشي عاقل او دانا څه کړ
چه قضا ږشي ور در ځار حکما څه کړ

مور و پلار خو نیک فرزند له خدایَ غواړي
چه بدبخت شي ادي څه کا بابا څه کړ

یارله یارَ په لوي لاس کله بېلیږي
چه لاس نه رسي یار څه کا آشنا څه کړ

په بنیرو په دعا څه شي کړوني خدای دي
چه خدای نه کا بنیری څه کا دعا څه کړ

بخت په زور و په زر نه دي چا چپل کړي
په دا کار کښ ناتوان څه کا توانا څه کړ

اي **رحمانَ** پتنګ عذر شته چه وسه
نور د شمعِ خندا څه کا ژړا څه کړ

چه په سترګو کښ يې خاروي څه به خوب کړ
چه په زړه يې غم د یار وي څه به خوب کړ

خوب له یارَ سره هم د عاشق نه شي
چه يې یار په بل د یار وي څه به خوب کړ

په دنیا کښ خوب هغه کا چه نادان وي
هغه روي چه هوښیار وي څه به خوب کړ

کوم طالب مطلوب موندلي دي په خوب کښ
هغه څوک چه طلبکار وي څه به خوب کړ

دیدار نه دي چا په پټو سترګو کړي
چه مطلب د چا دیدار وي څه به خوب کړ

بله لار د مرګ له لاري ګرانه نشته
چه په خوا يې هسي لار وي څه به خوب کړ

هر نګاه د دلبرانو ذوالفقار دي
هر چه غوځ په ذوالفقار وي څه به خوب کړ

زه **رحمان** د یار بنده و خدمتکار یم
چه بنده و خدمتکار وي څه به خوب کړ

هيڅ م نه کړه په دا عمر کښې حاصل
هسي پاتې شوم مردود و ناقابل

ما لا بوي هم د وصال مندلې نه دي
تش په توره م خداي نوم کړ دواصل

هسي ډوب يم د ګناه په درياب نو
چه په سترګو م و نه ليده ساحل

له وطن م په هر زمان وباسي
رقيبان ئې را پسي کړه حاصل

که بلا ده که جفا ده که وفا ده
دا همه واړه په ما کړه خداي نازل

د دنيا په پايښت م خان پليت کړ
حيف دي دا چه نه عالم شوم نه جاهل

توره زيږه م شوه سپينه زه حيران يم
چه **رحمان** لا نه بالغ شوم نه عاقل

که م څوک په فقيريځ شميري فقير يم
که م څوک په اميريځ شميري امير يم

د دلبرو صدقي لره ئې غنوارم
هسي نه چه په دنيا پسي زهير يم

د خرقي خدمت مشکل دي او که نه وي
زه هر دم و دغه چاري وته خير يم

هم پند آخلم هم پند وايم هر چا ته
زه د ښيښو يم مريد د ښيښو پير يم

په هجران کښې خيال د يار راسره مل دي
په زندان کښې د يوسف سره اسير يم

په خندا کښې م ژړا ده لکه شمع
لم عالم پټ پنهم د خان په وير يم

آزادي تر دا په هورته بله نشته
چه بندي د يار د زلفو په زنځير يم

چه همېش په غوبن ناري د هجران آورم
رحمان څکه د خپل یار ومخ ته خبریم

خوشحالا و دولتا مِ غلامان دِي
زه **رحمان** په پښتو ژبه عالمگیر یم

دنیادار د دنیا کار کا زه د دین
خوانین څما په ملک دِي خوشه‌چین

هیڅ کم نه دي تو سپین مخ د دلبرانو
بلکه شه دي څما شعر نمکین

مراد له تورو سپینو واړه دلبرِي دَه
موقوف نه دي دغه کار په تورو سپین

مرتبه د سلیمان چه چا له ورشي
هیڅ پوره نیمګړي نه دي پر نګین

چه رنګین رنګین مضمون پرِښکلي نه وِي
څه پکار دي د بیاض ورق رنګین

خوند په خوله دي نه په څښنه نه په خوارهٔ دِي
آب و خور که دچا تلخ وِي که شیرین

غرض خوب دي که په خس وِي که په خاوره
څه حاجت دي په بسترو په بالین

مصريِ توره هم په بد غلاف کښِ زنګ شي
خداي څوک مه کړه د بدانو همنشین

څه عجب که په ورځ مهر په شپه ماه شي
د **رحمان** آشنا چنان دي هم چنین

په حالت د عاشقانو نظر بویه
په زیارت د شهیدانو ګذر بویه

بي مرشدَ څوک خبر د مرید آخلِي
غوځ په غم د فرزندانو پدر بویه

بي رېبارَ رسیده و یار ته ګران دِي
په کوڅه د مهرویانو رهبر بویه

بي هنرَ چا دولت موندلي نه دي
په خدمت د صاحبانو هنر بویه

ستا له سترګو مِ هرګور ملاحظه شِي
له دي هسي سیاه دلانو حذر بویه

ښه چه سترګي خداي ملالي کړي د ترکو
لږ په زړه د ظالمانو اثر بویه

ستا په داغ به هریو زړه مشرّف نه شِي
دغه تاج د بزرګانو په سر بویه

چه خبر د **رحمان** نه آخلِي یار بد کا
بادشاهان له ګدایانو خبر بویه

مخ د یار شمس و قمر دري واړه یو دِي
قدّ و سرو صنوبر دري واړه یو دِي

حاجت نه لوم په شهد و په شکرو
لب د یار شهد و شکر دري واړه یو دِي

که بي یارَ په بستر د ټاسَ پروت یم
نار و خاوري وا بستر دري واړه یو دِي

چه ئي در و هم دیوار وته نظر کړم
باغ بوستان و دغه در دري واړه یو دِي

خداي د یار له هجرَ هیڅوک خبر مه کړه
تاخت و قتل وا خبر دري واړه یو دِي

چه غبار ئي د کوڅي را باندِ راشِي
وا غبار مشک و عنبر دري واړه یو دِي

هغه دم چه سرِي دروِمي له جهانَ
توري خاوري سیم و زر دري واړه یو دِي

قلندر چه په رښتیا قلندرِي کا
خان و سلطان و قلندر دري واړه یو دِي

ور دِ نه شِي په پردئِ زړکه هیڅوک
کور و کر و سبصر دري واړه یو دِي

چه دِ نه په کښ یو یار نه دِ آشنا وِي
هغه ښهر بحر و بر دري واړه یو دِي

په دکان دَ نابیناؤ جوهریانو
خرمهري لعل و گوهر دري واړه یو دِي

پسران دِ عار ځما له عشقَ نه کا
پاک عاشق پسر پدر دري واړه یو دِي

په سبب د ظالمانو حاکمانو
گور و اور و پښاور دري واړه یو دِي

غزا و شوه که ځان سنائِي و **رحمان** ته
بي هنر و گاؤ و خر دري واړه یو دِي

هغه یار چه بي وفا دي څه یار نه دي
هغه کار چه بي بقا دي څه کار نه دي

که د سر ښندل دشوار په ما و تا دِي
دا په عشق کښ سهل کار دي دشوار نه دي

اندېښنه سړي بیدار کاندِ له خوبَ
کم اندیشَ که بیدار دي بیدار نه دي

که څه عمر دي عاشق لره وصال دي
د هجران عمر د عمر په شمار نه دي

د چشمانو په ځنبل کښ تیرو بیر شِي
اعتبار د زماني اعتبار نه دي

که د سلو زرو پلار شِي به ئې څه کا
بي وقوف زوي د پلار څه پکار نه دي

معشوقي همیشه ناز په عاشق کاندِ
**رحمان** هیڅ له خپلَ یارَ آزار نه دي

تبتسم مِـ دِ وګړي په روزګار شي
چه له مرګ ئي نه ويره نه ئي ډار شي

له ده وزيږي د ده د ورانـدِ ومري
لائي مينه د دنيا په کار وبار شي

که ئي هر قدم د مړو په سر لار وي
يو قدم هسي وا نه خلي چه په لار شي

د ژوندو نصيحت پرِ اثر نه کا
مګر مړه له قبرَ پاڅي په ګُفتار شي

دا ميد مزي ئي هسي رنګ دراز وي
چه تر خضرَ ور ته خپل عمر بسيار شي

سپينه ږيره به اورني کښ زوي واخلي
چه به ما لره سپاهي ومنصب دار شي

دخرما زړي نهال کا ور ته ګوري
چه دا سوري دا ميوه به م پکار شي

هر هر فصل چه ترِ ريبي هوسيږي
چه به ګانده را ته بل فصل طيار شي

لا ئي ليه تخم هم نه وي کـولي
ناکشته ورځني طمع د خروار شي

غروندي د ناز کړيو خسيو غړي
چه صبا بيګاه به ما لره ګوهار شي

لکه ورکي کتـوري له زانړي غواړي
به دا هسي پوچ ګويئِ ئي اعتبار شي

رحمان خه دي چه به پند وچا ته وايي
هدايت د هر بنده په کردګار شي

انتخاب

# د دیوان د خوشحال خان

خټک

# انتخاب
## د دیوان د خوشحال خان خټک

ای چه خیال کړې په دنیا — دنیا څه ده بې وفا
که دِ یو زمان زړه ښه کا — بیا دِ زړ کا په ژړا
راحت نشته په دنیا کښ — اَلدُّنیا دارُ البَلاء
دنیا مه گڼه څه نور څه — دا ده ځای د اِستنجا
زه چه تا گورم حیران شم — ای ابله مشتِ گیا
هر زمان نوِي خیالونه — هر ساعت نوي هوا
یو دِ زړه زر دِ یارئِ دِي — یو دِ سر سِل دِ سودا
کله مست د مال و ملک شي — کله مست شي د صهبا
د مسند د پاسَ کښیني — لور په لور دِ مُتّکا

په یوه لوري غلطان شي ‏ ‏ چا ته مخ وچا ته شا
څوک وتا وته ولاړ وي ‏ ‏ په تسلیم په سل جفا
څوک له تا سره مجلس کا ‏ ‏ واړه هزل مشغـولا
څوک له ورایه درته ناست وي ‏ ‏ غږوي چنګ و سُـرنا
څوک په در در ته للیري ‏ ‏ په نمط سنا د لِقـا
حاجبانو ته وسیل کا ‏ ‏ که مِ وُرسِي دُعـا
ته په ځاي بیخوده پروت یي ‏ ‏ نه دِغم نه دِ پـروا
هي فریاد فریاد له تا نه ‏ ‏ هي توبه توبه له تـا
نه دِغوږ د آرویدو شته ‏ ‏ نه دِ سترګي شته بینا
بیهوده په ځان غرّه یي ‏ ‏ حبطه یي په رښتیا
فلک ډیر زیر و زبر کړل ‏ ‏ چه تر تا وُو هم والا
ته په مثل د داني یي ‏ ‏ دا فلک لکه آسـیا
ډیر ئي تا غندِ صیده کړل ‏ ‏ اوس ئي واردي هم په تا
که بادشاه د درست جهان يي ‏ ‏ خود په تا نشـه غوغا
چه دعوي ئي د جهان کړي ‏ ‏ نور به هم وُو ستا پخوا

| | |
|---|---|
| نه سلیمان وه نه يې تخت وه | نه آصف د برخیا |
| نه بهرام وه نه يې گور وه | نه سکندر وه نه دارا |
| نه جمشید وه نه يې جام وه | نه قباد وه نه کسرا |
| په شماره کښې به مانده شم | زیات يې څو شمارم تر دا |
| که هزار که صد هزار وو | که تر دا وو هم ډیر لا |
| واړه لاړه له جهانه | جهان واچول تر شا |
| هغه شاهان چه ذِي شوکت وو | څه يې هم شته هویدا |
| ساماني په جهان هم وه | سلجوقي وه هم پیدا |
| غزنوي وه په غزني کښې | چه يې کړې هم غزا |
| څه نښان يې مرنده نه شي | د برمک نه د یحیی |
| کرّ و فرّ د عباسیو | مگر ډوب شه په دریا |
| د فلک فریب پټ نه دي | چه يې تل کاندِ له تا |
| کله زرّ و تا ته بنه کا | کله آس و غیلي غوا |
| کله روزي در ته بنه کا | کله خویش و اقربا |
| نه به زر و تا ته پرېږدِي | نه مالونه نه اشیا |

په شداد ئې فساد کړي — په قارون ئې وکړ لا
نه ته پلار يې د زهمنو — نه زهمن دِي زوي ستا
نچپل څان د هرچا کار دي — که پسر دي که بابا
حلق په خپلو لاړو لوند دي — د گدا هم د بادشاه
نه د څان يې زه د څان يم — نه جدا يې زه جدا
غم بناديِ د هغو بخره — چه لري ژړا خندا
که حشم دِ ښي بي شمارَ — خزاني دِ بي احصا
چه اجل در لره راشي — نه هغه بکار نه دا
لکه هسي رنګِ کار دي — راشه واوره اي فتا
مهيّا و مرګ ته کښينه — سرانجام کړه د عقبا
که دِ توان وشي تقويٰ کړه — که تقويٰ نه وِي فتويٰ
بهشت ځاي د نورچانه دي — خداي ياد کړي اتقيا
که نچپله پارسا نه يي — خاکپاي شه د پارسا
هر چه شته شريک له واړه — مشترک دَه هدايا
که غني يي سخاوت کړه — که فقير يي سخ دِ لا

توچه

بو چه خلاص يي له حسابَ — بل به نه يي مبتلا
په شوکت لکه شهباز شَه — په همت لکه عنقا
لکه چغند هسي مه شَه — نه يُي رنگ نه يُي معنیٰ
خوره خوروه له خپلو ليچو — غضنفر شَه نه رويا
سخاوت کړه څو په تا شي — اسراف نشته د سخا
په سرتوري پرِ ناري کړه — چه تالا د دنيا تالا
چه يُي قطع عوايق کړل — په آسمان کښيناست عيسیٰ
د عسل په درد شيرين شَه — نه حنظل نه ګندنا
مه لرم شَه مه افعي شَه — غم فزا راحت زدا
يار د نورو په ګردن کړه — خپل بار مه کښيږده په چا
جهان ځاي د مکافات دي — بد به مومي چه بد کا
د بديُِ جزا بدي دَه — د نيکيُِ نيکي سزا
چه به کيږي توري خاوري — نار په نار واړه اعضا
دا څه توري خاوري نه دي — چه پرِ ځي صبا بيګا
همګي جونه زلفي دي — خاوري شوي د بيضا

چه په سترګو باندېني بېدی — باري ورو بېده څخو پا
د بهار ګلونه ښه دي — که ئې تل دردي بقا
زمکه سبزه زرغونه شي — د حمل په ابتدا
زنګارنګ ګلونه وا شي — هم په باغ هم په صحرا
نه یو ګل د بل په رنګ وي — نه ئې بوي سره همتا
یو څو ورځي شګفته شي — زر فنا شي په جوزا
تر بلبل نادان څوک دي — یا کم‌عقل تر بورا
چه په هسي څیز ئې مینه — چه ئې څو ورځي بقا
هغه څیز چه بې وفا وي — زړه پرې نه تړي دانا
په جهان کښ مینه هم وه — د یوسف د زلیخا
که وېسه وه که رامین وه — که مجنون وه که لیلا
که فرهاد وه که شیرین وه — که وامق وه که عذرا
اوس ئې څښني لیدي نه شي — دي جهان کړل فُوْ فنا
نه به ګل د چمن پرېږدي — نه بلبل و نه طوطا
نه به طفل څني خلاص شي — نه سپین‌ږیري نه برنا

نه به پاتو عشق د ځوان ږي — نه بنه حسن د خوبا
ګاه د زوي لور په غم شي — ګاه د يار و د آشنا
چه به پس له ما دا څه کا — حال به څه ږي د هرچا
ولي هسي فکر نه کړي — چه به دا څه دِي ځما
بخري اوس نه دِي اول دِي — چه نه ارض وَه نه سما
چېل قسمت به هرڅوک موږي — که افلاس وِي که غنا
څه اندوه د بوه نفس کړي — اي د نفس په غم شيدا
خو د نفس څله دِ ومرِي — که کشکاب دِي که حلوا
غرض تن دي تن دِ پټ وِي — که خاصه وِبي که خامتا
که د نفس په نغوته دروږي — تا به زر کاندِ رسوا
نفس په دا راغلي نه دي — چه روا يا نـاروا
چه ارواح پرِ خوبني مرږي — هغه چار ګـنړه اعلا
مت په علم کړه چه علم — اژدها دي هـم عصا
يا په علم کښ لذّت دي — يا په عشق کښ د مولا
نور همه چارِ عبث دِي — که اعلي دِي که ادنـا

که ته ترېو کښېنې خوشحال — د فلک ترو څه پروا
اندېښنو ته زړه ورمه کړه — څو حیات یې په دنیا
که تل خوښ اوسې تل خاندې — یې اسم با مسمّا
تر هغه نادان څوک نشته — چې نن غم خوري د صبا
غم غیرة په یوه لور کړه — خاطر صاف شه له هرڅا
د فردا اندوه نن مه کړه — کوره څه وشي فردا
واړه وسپاره وخدای ته — که دوستان دي که اعدا
که لقمان شي په حکمت کښ — یا که بوعلي سینا
نه په لار د مرګي بند کړي — نه به خلاص شي له قضا
د قضا سره جنګ نه شي — د قضا وروره رضا

که رضا و قضا ورکړي
نو **خوشحال** یې په رښتیا

ته چې هسې په غوغا درومې سیلاب — ولې هسې په ساعت کښ شي بې آب
آفرین دې په همت د لوی دریاب شي — چې په هیڅري ئې چار نه دَه کریاب
چې په پورته د کاغذ وګوډې دروې — که رښتیا دَه دا دې دروې بې طناب

وطوطي

د طوطي ژبه استاذ غواړي د نطق
ګنزه دي به لا بتر وه تر غراب

چه په مخ کښې دِ نابود شي واړه ستوري
د آسمان په ستوريو وځيږه آفتاب

که لښي ور باندِ بلي کا ابري شي
د ژوندون هنر به نه شي له سيماب

له ياقوت دِ هاله سيالي ښه کا
که د اور په تاوکښې دا نه شي بي آب

چه مرغونه وزر بيا موږي الوزي
هيڅ مقصود تر سرَ نه شي بي اسباب

په ځوانيځ کښې به اوده ده په زوړ والي
د خوشحالَ سترګي بيداري شوي له خوابَ

درته وښيم کيميا د سعادت
د بدانو سره مه کوه صحبت

مه بدګوي مه بدآموز مه بدانديش شه
که دِ زړه وِي چه ورنه رسي آفت

که لويَ غواړي خان کم ګنزه تر بلَ
بل تر دا د پاس نشته نصيحت

په دوستانو تا لطف کړه څو په تا شي
د دښنو سره هم ښه کوه خلقت

د نيک خواه خبره آوره پرِ عمل کړه
نا لغوتانو ته طيار وِي ندامت

د نمانځه تر قضا ګرانه دا قضا ده
چه قضا شي د څلورو مصلحت

نوراني کا هغه ځاي چه سره کښيني
ديرينه څلور هوښيار په مشورت

په اخلاص چه په دعا لاسونه هسک کا
در به پرانت شي د فتحِ د نصرت

بې کنکاشَ به هيڅ کار په لاس وانه غلي
چه خبر دي د کنکاش په برکت

چه په نشه تواضع کښې سود حاصل دي
همه سود نشته د ډک طباخ د ست

که ګنجونه د قارون در ته انبار شي
په هر لوري عوررزوه په سخاوت

نادانان به ئې پريږدي ورستو و پلّ ته
عاقلان به وړاندې بياپي خپل دولت

نادانان که ئې شدت وته طيار وي
لا ئې نه دي خبردار په حقيقت

خو دوستي د دنيا ډيره وي په زړه کښې
هغه همه ډير فساد دي قباحت

شور غوغا جنګ وجدل به ترمينځ نه وه
که هر څوک سره راضي وي په قسمت

که حاتم غُندِ کرم کړي د مهرانو
د يوه د مړي په چا مه بړده منّت

څو بدانو سره بد شي همه ښه دي
ولي عفو کرم ډير لري لذّت

دا نابرده دنيا هيڅ متاع نه که
چه به کاندې عاقلان باندې شدّت

که دې سر څي که دې مال څي که دې نور څه
استوار اوسه په کار د رفاقت

په ظاهر باطن کفران د نعمت مه کړه
هواخواه اوسه د خپل ولي نعمت

که راحت غواړي په ځاي محنت قبول کړه
بې محنتَ هيڅوک نه مومي راحت

که دارو په خواست موندل شي مه ئې آخله
که د مرګ وته نږدې کاندې زحمت

که آسمان دې د زمري په خوله کښې ورکړي
د زمري په خوله کښې مه پرېږده همت

| | |
|---|---|
| د همت ذخیره واسته د وړاندې | دا یو څو ورځې ژوندون دي غنیمت |
| په اوبو چه روانه وي شونډې مه پرده | په ورځ زر خونه کړه په شریعت |
| که ژوندون دي هم هغه دي په جهان کښې | چه یادیږي د سړي د ښو خصلت |
| دا راحت لکه د نقر د بوربیا دي | دا راحت نشته په تخت د سلطنت |

چه جامه ئې پاتې نه شي مرده شوي سته
خدايَ درکړي و **خوشحال** هسي رحلت

| | |
|---|---|
| ما چه نظر وکړ په ذرات د مخلوقات | ګول په جهان راغلم تر به ګول غمَ هیهات |
| یو خادر ترسیان دي نهم پاتې شي له کارَ | دا همه کیسي همره ادراک د سماوات |
| هیڅ نبي ولي ئي درست اسرار موندلي نه دي | لویه کارخانه دَه که وکوري کائنات |
| وزیږي له نوحَ د طوفان په موج نا شي | زوي د آذر مري له نار نه نجات |
| کار د بل حاکم دي چه څه کاندې هسي کاندې | وایه سردرګمُ دي دا آبا دا امّهات |
| د خل د ساعت د طبیعت دي که د نور څه | نیک زیږي له بد د له بدذاتو نه نیک ذات |
| همره شي عالم چه فرشتو ته سبق ورکړي | بیا به خبر نه يي د جهان په تُرّهات |
| رد دي که مقبول دي که معقول که نامعقول دي | ګوره ننداره کړه نر دا دم مه رهه زیات |
| سر په سجدې کیږدي وایې نوځ کوم **خوشحالَ** | زړه ته نظر نه کړي په کښ څو لات و منات |

چه به نه کاندِ خبیث — نور به څه کاندِ خبیث
څني طمع د ښو مه کړه — کله ښه کاندِ خبیث
چه د بل ښېګړه وینې — ځان اوبه کاندِ خبیث
که يُ ځاي وکړي په زړه کښ — خوږ دِ زړه کاندِ خبیث
که څما په حوله شي خداي دِ — زر پرانده کاندِ خبیث
چه جهان ورڅني خلاص شي — خداي دِ مړه کاندِ خبیث

د میږي غُندِ خوشحال
الواته کاندِ خبیث

کلک خراباتي يم له ما مه غواړه صلاح — دکي پيالي آخلم تر صباح وتو رواح
ځوک دي د نمر خوبي به ستا دمخ په خيرکا — نمو مثال چراغ دي ستا جمال لکه صباح
مه پوښ زاهدَ د ښه مخ له ننداره نه — ستړګي چه دا کار دي په فتوي د عشق مباح
توي کړه په هنګام د حادثي ساقي په جام کښ — مي چه باده پارځي په زجاج کښ ښه مصباح

پا څه محتسبَ خوشحال راغي جنګ ته جوړ شه
غسل په مي وکړه د مؤمن وضوء سلاح

عمر هر زمان رفتن کا لکه باد — مرګ دِ هر زمان سري لري په ياد

چه د عمر ئ بنياد په هوا ايښي
د آدم خاوري د غم په اوبو نم دي
انبيا و اوليا لاړل وګوره ته
د دنيا ژوندون هيڅ نه دي که ئ ګوري
هميشه که ژوندون غواړي درته وايم
مسافر چه ئ سفر دي ځو د وړاندِ

په دا هسي ژوندون څه دي اعتماد
په قدرت خميره کړي چل بامداد
نه په واني چه د دوي نه وه بنياد
چه هيڅوا څنی بيا نه مونده مراد
هميشه کوه د نفس سره جهاد
په مقدار د هغي لاري اخلي زاد

راشه زره له عنبرو پري کړه اي **خوشحال**
په اميد ئ د ديدار لره زړه ښاد

په هيڅ رنګ به د عالم له خولي خلاص نه شي
په ځوانئ کښ که تقویٰ کړي دا به وايي
په پيرئ کښ که هرس کړي دا به وايي
له خبرو که خوله ولني خاموشي شي
که خوله پرانزي هر چا ته دا به وايي
که له خلق ګوشه ګير شي دا به وايي
که هر چا لره ور دروي دا به وايي

که په خوي له فرښتو شي برابر
له هوس ووت خاوري ئ په سر
چه په سينه بديره څه کا ګيږدي خر
نوم به زر کښيږدي په تا د غوبل ستوړ
چه ګريږي ما غزه نه لري د سر
چه څان روغ په خلقو نه ويني مګر
چه صبا په بيګاه ګرزي در په در

که دنیا ډیره ګټي په ښان ئې نه خوري — د شوم نوم به په تا کښېږدي خپل پسر
که په هر ځا لوسته کړي د خپلو زور — دا به وائي چه د غلا ئې دي دا زر
که توانګر شي د قارون په نام باله شي — بې شعور کم بخت باله شي ناتوانګر
که ښې ښې خبرې وکړي په ځواب کښ — وائي څه حرام زاده دي لنډه ور
که ځواب وچا ته نه ورکړي سرکوز کړي — وائي هیڅ نه دي غوولی بې هنر
که په توره مړني شي کذوي ئې — لیوني جاهل دې بولي هم ابتر
که له جنګ په ستنه اوسي دار کوري — وائي ښان ساتي نامرد دي نه زړه ور
که زربفت او تبلک آغوندي تکلیف کړي — وائي دا د ښځو خوي دي نه د نر
که ساده جامې آغوندي در ته وائي — چه د شوم او د ممسک دي هسې چر
که سفر د هر دیار کړي در ته وائي — چه حرص ئې ګرزه وي په هره لیر
که په کور کښېني هیڅ لوري وته نه ځي — وائي کښېناست پخپل کور لکه دختر
که لونه ګرزي واده ته هوس نه کړي — بیا دې بولي هیز نامرد مرده ذکر
که واده وکړي بیا دا در باندې وائي — آزاده بنده نه وه شه په بلا سر
راځه زر دا هسي رنګ ملامت نور شته — که ئې کښم در ته به ساز کړم یو دفتر
نه او نه د چا په یاد په څه شماره یو — د عالم له خولې خلاص نه وه پیغمبر

په پښتو شعر چه ما علم بلند کړ
د خبرو ملک م فتح په سمند کړ

مدعي د توري شي اوراورکي وه
د سهيل غنډِ م خان بانډِ خرکند کړ

راز د زړه هرگز ساته نه شي په زړه کښ
په ساته کښ ئې استاذ وما ته پند کړ

يو په حال او په ماضي کښ فايده نه وه
څه بنکاره ئې د خبرو را ته خوند کړ

د مرزا ديوان م ومانده په گوډي
مسخره م ارزاني خويشکي زمند کړ

که دولت وه که واصل وه که دانور رُو
په خبرو م د هر يوه ريشخند کړ

قتلمي م ورته سازي کړي د قندو
د اوربوشو په دوديئ چه چا شخوند کړ

لعل و در م ورته درپل د نظم
د شکرنزو بخاره م مستمند کړ

هر کلام م واردات دي يا الهام دي
چه موزون م په تقطيع د بحر بند کړ

په تشبيه او په تمثيل په نزاکت کښ
عذوبت م د خبرو چند درچند کړ

په تازه تازه مضمون د پښتو شعر
په معنیٰ م د شيراز او د خجند کړ

د بوستان ونې م واړه پيوندي دي
حقيقت م د مجاز سره پيوند کړ

نه اندوه د مدح ذم نه هنه کښ يم
چه د زړه په زور م شعر چا پسند کړ

په فارسي ژبه م هم ژبه گويا ده
په پښتو ژبه م خلق بهره مند کړ

د جاهل په بخره تش سر شورول وي
آفرين م په خبرو دانشمند کړ

يا به درست په حسد پور يا به جاهل وي
جاهلان لکه کلاغ ګندګي خواره دي
نه م سود نه م مقصود شته په دا کار کښې
چا ښما مرورند تيښک نه کړ په دا کار کښې
هم د زاردي هم د سخ که فهم وکړي
سخ د دا په سخندان د زماني شوي
تر قيامت به يا ديږي په جهان کښې

چا چه زړه په دا خبرو ناخورسند کړ
ښنو طوطيانو په د زړه مهر په تند کړ
محبت ښما په غاړه دا کمند کړ
ما د سر سړي نه خلاص په زور مړوند کړ
زړه چه تا د شاعرۍ کار پسند کړ
زار د دا چه د په فکر زړه نژند کړ
هر سړي چه خداي په فضل ارجمند کړ

عشق ته نه اورنګ زيب بادشاه بهتر يي
چه خوشحال د په عالم کښې سربلند کړ

لکه غشي لره بويه تيرانداز
هميشه د زړه په لاس تله دوزن
په نور آس د حقيقت ناوي سوره کا
سل جلوي سل کرشمي سل مکيزونه
د صنعت زيور په خورنګ بر پوري
د تجنيس پايلي جوري په پښو کړي

هسي شعر لره بويه سحرساز
زيات وکم د وزن يو نوري عماز
په سپين مخ پلو ينولي د مجاز
په نظر کښې کا ښکاره د سترګو ناز
د تشبيه چندنه چوا بانډ طراز
د ترصيع حميل په غاړه اوږد د راز

د مضمون

د مضمون د نزاکت غمزه ورځخه
سر تر پايه درست صورت سره يو راز

يې په خپل کمان کښې پروس — له اصلي کاره مايوس
دانه نه يې چه دِ مغز وي — بې داني حبطه بوس
ډير عيب ونه پرند شوي — د پردي عيب جاسوس
چه پيدا ئې جاسوسي شوه — اګر بنه شه تر آبنوس
د طوطي برابر نه يې — که نګار لري طاؤس
که غوټه کړې په چرګورو — په دا باز نه شوي تپوس
لعل ودر پر حبطه دي — چه رنګ نه لري عروس
راشه مخ په آئينه کړه — چه چهره شي در معکوس

د خوشحال خټک ترپه ده
ستا له زرقه له سالوس

په طاب کښې دِ سستي وينم درويش — چه وږلي يې د دي خوږي له ويش
نعمتونه رنګارنګ دي په هر لوري — په غوښتونې باندِ نه ده جفا پيش
څو طلب همره موندل دي په دا دور — بلکه لا تر طلب بجره مومي بيش

د عسلو خواږه کله هغه مړي
چه حذر کا د مچئ له بدَ نيشَ

لا له وقتَ د طبيب طلب بايده دي
څو لا پايي په دنيا د زړه له ريشَ

په هيڅ دين کښ ما وفا ليدلي نه دَه
خبرداريم د هرچا له دينَ کيشَ

په هر غشي چه زخمي شوم يا مې وکوت
هغه غشي وه په تن څما له کيشَ

هيڅ پروا اندوه دبل د بدو نه کړم
څو مې پا نه ځي بلا له ځانَ خويشَ

په پيغام د بوسي سود نه شي **خوشحالَ**
چه څما په خوله مين يي را نزدي شَ

نن مې وکړه له استاذ نه يو څو سوالَ
سرافراز ئ په ځواب کړم د هر سال

وړم څوک دي چه هميش په يوه حال دي
وئي تل په يوه حال دي ذوالجلال

وړم څوک دي چه هميش په بل بل حال دي
وئي خوار بڼي آدم لري دا حال

وړم سر د فراغت څه وي دري څيزَ
تندرستي او ايمني د دنيا مال

وړم کوم سړي لايق دي د يارئ
وئي هر چه دروغ نه لري طيتال

وړم ځوان دي په ځوانئ کښ کومه چارکا
وئي هر زمان د علم اشتغال

وړم زوړ دي په زوړوالي کښ کوم کارکا
وئي چوړ دي کا له علمه څپل اعمال

وړم کوم سړي به تل وي په حرمت کښ
وئي هرچه له چا نه کاندې هيڅ سوال

وړم طمع قطع نه بویه له چا نه    وړئ هرچه بته بئ اصل بنه خصال
وړم ښه دي د دنیا دا بني بني چاري    وړئ واړه افساني دي خواب وخیال
وړم کوم بخت وجدل دي چه تل بته دی    وړئ دا د علم بحث دي جدال
وړم کوم رښتیا چه ؤ وايي پر سپک شي    وړئ چل هنر چه وايي دم درحال
وړم کوم یو بې نوا بللي بویه    وړئ هرچه بئ په غاړه ډیر عیال
وړم کوم سړي نیکبخت بللي بویه    وړئ هرچه سخاوت کا په اموال
وړم کوم سړي لایق دي د ستاینې    وړئ هرچه په بخښلو شي خوشحال
وړم خلاص به شم په ښه له بدَ یارَ    وړئ تل څنې غوښتنه کړه د مال
وړم دار او نرس له کومَ شخص بویه    وړئ هرچه ورته یو حرام حلال
وړم ښه څیزونه ګران په مرد تر ځان دي    وړئ دین اوبل دانش دي د رجال
وړم ښه دي چه دانش پر ضایع کیږي    وړئ لاني د دروغ و قیل و قال
وړم لاف هډو په ښه تر سره کیږي    وړئ زر بویه ځوانان بویه قتال
وړم ښه دي چه نښان د ځوانمردئ دي    وړئ عفو په هنګام د استقلال
وړم ښه رنګ به والوزم آسمان ته    وړئ دا شي د همت په پر و بال
وړم کومه چار بهتره تر هرڅه ده    وړئ هرچه نیک عمل وي نیک افعال

وړم څه کړم چه محتاج د طبيب نه شم | وړئ لږ خوره لږ دخول کړه لږ مقال

وړم څه کړم چه هر څوک په ما مين شي | وړئ مه وايه دروغ مه کړه جنجال

وړم چا سره تدبير کوم په کار کښې | وړئ هر چه رسيدلي نز کمال

وړم چا سره نيکي د کړلو نه ده | وړئ هر چه ابلهان دي عنبرسال

وړم کوم سړي د سنجمن بللي بويه | وړئ هر چه په بنيادي دِ ړشي ملال

وړم چا سره خويشي دوستي د کړه ده | وړئ هر چه نز تا کوز لري احوال

وړم کوم سړي مؤمن بللي بويه | وړئ هر چه راضي نه وي په وبال

وړم کومه چار جنت دَه په دنيا کښې | وړئ ژکه چه ئې خوبي وي هم جمال

وړم څه دي د **خوشحال** ختک خبري | وړئ واړه در ګوهر دي عقيق لال

څما خوب له انديښنو نه شي بيدار شم | و عالم وته په دا تهجد ګذار شم

غرونه غرونه ګناهونه را په ياد شي | و خپل خداي ته په توبه په استغفار شم

استغفار په خوله په زړه د شر فکرونه | بيا له خپلَ استغفارَ شرمسار شم

د دي دور د شيخانو حال ړم وکوت | چه ساعت ور سره کښينمَ تر دار شم

چه حلال کسب ئې نه وي شکراني خوري | زه حيران په دا شيخيءِ د شيخ مکار شم

دا تاتار چه په جلي ذکر شیخان کړي
کله زه په تاخت راضي په دا تاتار شم

ما دا هسي شیخي دوي نه دَه بخښلي
په محشر دِ د رندانو په قطار شم

چه څرګندَه سربازي کا ښندِ د تورو
زه خوشحال ختک نر هسي هنرګار شم

حیران یم نه پوهیږم چه زه څه یم څه به شم
له کومَ یم راغلي بیا په کوم لوري به ځم

خبر د هغو تللیو بیا په بیرته چا را نه وړ
له حالَ له احوالَ که يُ هر څوک وپښتم

دلي چه څوک لیده شي نن يُ شپه په دا بانده کښ
آخر يُ له دي ځایَ وار په وار واته ګرځم

جهان پر کبتوری شه زه په مثل د میږي یم
حیران په کښ جاروزم لاس ولیني په کښ وهم

دنیا وته چه ګورم کارو بار نه د وکړي
د ورکیو تماشي دِي زه يُ هم ور سره کړم

چه نه پر مبتلا يي که دِ مال دي که دِ ملک دي
داواره بي له خوبَ بي له خیالَ نه وینم

چه نور ولیښته دِ سپین شول خوي دِ نور نه شه خوشحالَ
باور کړه اوس ناحق د سړي نوم در باندِ بددم

د خداي منت را باندِ چه يُ هست کړم له عدمَ
بل خلقت يُ نه کړم را پیدا شوم له آدمَ

پښت په پښت راغلي مسلمان محمدي یم
چار د چاریارانو سره واړه منم سمَ

درست په دا پوهیږم چه څلور مذهبَ حق دِي
زه د حنفي مذهب دعويٰ لرم محکمَ

مینه يې په زړه د علماؤ راکړه ډېره
مینه يې د دور د شیخانو راکړه کمه

نه خراباتي نه قمار باز نه زناکار یم
نه قاضي مفتي چه يې نظر په څو درهمه

بخره يې د تیغ راکړه په اصل کښې پښتون یم
پلار په نیکه نه یم بې دولت بې حشمه

پلار م سور کفن وکور ته لاړ نیکونه واړه
ډېر خلق پر ومړ خون يې لاړ شه تر عالمه

پلار م شهباز خان په سخاوت لکه حاتم وه
زړه يې د زمري په توره تېز وه تر رستمه

ټینګ ولاړ په شرع تل يې کار وه په رښتیا کښې
خط سواد يې نه وه نور دانا وه له افهمه

څو به نیکه ستایم یحیٰی خان جنت يې ځاي شه
روغ لکه یوسف وه درست له سره تر قدمه

بل سړي که سور وه دي پیاده سره به سم وو
قد قامت يې همره د مړاني چار پر تمه

بل نیکه حُما ملک اکوڅه په خټک کښې
ده راوړه دا بخره د لويې مقدمه

ډېرش کالونه وشول چه م پلار دي شهید شوي
مړ کړه یوسف زیو ما هم اور کړه بانډ سمه

نور پښتانه ډېر دي خویوزه په کښې توره یم
واخلم ورکړم بند کړم پرېږدم ووژنم تر دمه

ډېرو السونو عليمي را سره وکړه
سر يې را ته کوز کړه هاله خلاص شول له ماتمه

یو یوسف زيئ دي چه په ما ئې منت بار کړه
لا په اکوزیو د ننګ چار دَه مسلمه

زه چه دَ غقد په کال په بنه د اورنګ زیب شوم
۱۰۸۴
کور د جیلخانه م په کښې ډېره وَه بې دمه

څو کالَ بندي کړم اورنګ زیب په هندوستان کښې
روغ راغلم تر کورَ بیا يُې خلاص شوم له ستمه

هرچه زړه ئې وتړلم په زندان کښې هغه واړه
ومړل خوار شول ورک شول خالي نه دي له الم

زه لکه یوسف له بنده خلاص شوم کامراني کړم
پاک پاکیزه زړوم اوړ مې نه کړه بېها کم

زوي مې اشرف خان دي چه خور شوي کور پرېښول شه
زه چه په بند لاړم خیلخانه مې شوه برهم

څلېرښت زوي نور لرم پوډي په کښې چه لوي دي
واړه برخوردار شه خدای ئې وساته له غم

اوس پنځه نمسي لرم افضل او اشرف خان دي
خدای ئې برخوردار کړه طمع ډېره ترې لرلم

بو مې سکه ورور دي چه ئې لار د حق نیولي
دوه وروڼره مې نور دي یو یتیم دویم بې نم

څای مې ملک پور دي چه ئې سرای بولي وګړي
قام اولس مې پروت دي ترلکئ په غره په سم

ښل زره خوانان لرم همه له یوه ذات
واړه یکانه ښا په خدمت کښې راته خم

څه شو شمشیرخان ترین که پوخ پنځ هزاري دي
ما وته هیڅ نه دي مګر بې اوم ښلغم

څو به د منصب په زور څما برابري کا
څه مجال د ګدو چه به سیالي کا له ضیغم

خوار دې یوسفزي شي چه ترین ئې حاکمي کا
اوس که ښکار د بازکاندې هېڅ ئې نه ده کرم

زه د شاهجهان بادشاه د ننه د زړه سر وم
چارې مې اورنګزیب په ناداني کړه برهم

دم وهلي نه شم څوک مې داد دلاسا نه کا
داغ لرم په زړه کښې بې طبیب بې مرهم

څو زره سواره دي سرګردان په څو کالونه
زه که په زړه روغ وي چار به ولي وه درهم

سل کالَ که تېر شي د مهم به فیصل نه شي
د ازنګ چه کېږي ګوره څه وشي له همم

ښوچه په ښو کالَ شمشیر خان ترین یو کار کړ — مابه په ښو میاشتي واره چار کړه مستحکمَ
دا مکر فریب چه د حیات ترین هنر دي — کله دا د مرد دا د ښځي دي عــالمَ
پوهه تمیز نشته دا جهان په ستر کو روند دي — ښځه د خانئِ په خطاب کاندِ مکرمَ
دا انشا او دا املا چه دي شیطانِي بولي — ټل باندِ نفرین ووري له لوحَ له قلمَ

حال حقیقت وایم چه هرچا وته معلوم شي
زه چه شاعر نه یم هي توبه له مدحِ ذمَ

که همیش دِ همنشین وِي تور ماران — ښه دِي دا نه چه قرین وِي بدکاران
هرچه ستا عیب وتا وته ښکاره کا — په جهان کښ هم هغه ګڼړه یاران
په کردار کښ یار اغیار سره بېلیږي — ټر یارانو ډیر لباس کا اغیـاران
د کمذات یارِي به هیڅ وفا و نه کا — لا په تیره بي نمازان او میخواران
لکه تخم هسې بر هسې ئې بوټي — نه ئې زمکه خوند بدل کا نه بـاران
د زړه رازو چا ته نه ویلي بویه — چه دَ زمکي په مخ نشته رازداران
په قیامت به یو په یو واره جواب لي — که میږي ملخي پایمال کړي شهسواران

د خوشحال باندِ سلام شاهان د وخت دِي
په سپیرو ابرو لړلي خاکســاران

؛ بیهوده

بیهوده په ښان غرّه دي دا انسان
لیوني ملال دلګیر دخوب په ورل کښښ
په یوه ذرّه خبره خوار خسته شي
په دا هسي رنګ څوکبږ څو روبي کا
واړه عمر تیرويِ په دا غفلت کښښ
په ژوندون چه د خپل ښان فکرونه کا

په ساړه په غارمه چینګه خوله حیران
نه د لوږي نه د تندي لږي توان
په یوه ذرّه سرخوږي شي په ښان
چه نظر ئې له خودئ وي په آسمان
تر هغه پوري چه دمري په دا شان
پس له مرګ به هغه کا ډیر ارمان

زاهدان او شیخان هر لوري نه ډیر دي
دخوشحال ختک پکار دي عارفان

چه مِ بنه په زوړه کښښ فهم فکر وکړ
یو هغه سړي احمق بللي بویه
بل هغه سړي احمق بللي بویه
بل هغه سړي احمق بللي بویه
بل هغه سړي احمق بللي بویه
بل هغه سړي احمق بللي بویه
بل هغه سړي احمق بللي بویه

احمقان دا نه ښکاره شول په خویونو
چه باور کا د غلیم په سوګندونو
چه یاړو شي د لړمو د ماړونو
چه په سینه زیره خیال کاندِ دجونو
چه د ښځو سره یاڅي په جنګونو
چه د خسر کوه به اوسي په کالونو
چه ولښته په توروي په خضابونو

بل هعه سړي احمق بللي بويه — چه بزرګانو سره خير شِي په جنګونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه يک لخته به اعتبار کا په ټربرونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه په هرطبيب دارُو کا د رنځونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه به بي توري دعوى کا د ملکونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه به جنګ وته پريکړِي ځِي ترملونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه لوئِ کا په لباس په کسوتونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه به دي غوارِي لوئِ په نسبونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه د تيښتو ګمان ورک کا له مريونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه به مال د دنيا نه خورِي په کورونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه بدخواه سړي به پريږدي په رويونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه بي ځايَ زغلول کا د آسونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه پيران به کښينوِي په خپلو خوتو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه بي حدَ تکلّف کا په څـابونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه خبري کا په سترګو په لاسونو
بل هغه سړي احمق بللي بوبه — چه به لوړي د سړيو په سرونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه د غوښتو کړ به کانډِ په دا کونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه به سُود و سَودا کانډِ د بازونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه — چه برمنډه کُنَّه لانبي په سيندونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه
چه غوږ نه کا د **خوشحال** په دا حرفونو

چه بهتر تر هر نعمت دي — نورخه نه دي روغ صورت دي
چه يُې دا نعمت روزِي وِي — سر تر پايَ عنايت دي
که يُې نه پيژنِي قدر — روغ صورت لوي غنيمت دي
ستا په تن کښ خان يواځي — ترجهانَ زيات قيمت دي
که دِ ځان نه وِي جهان وِي — په عدم يُې اشارت دي
دا جهان لکه معنىٰ شه — ستا وجود يُې عبارت دي
چه په ځاي يُې عبارت وِي — د معنو همره قوت دي
د صورت د خوشحالِيُ — مدار واره په صحت دي
چه صحت د صورت نه وِي — ورته خس مال و دولت دي
رنځ په کور کښ هم بلا دي — لا خه نور چه په غربت دي

پښه مِ هسي رنګ په درد شوه    چه تېرېږي يو ساعت دي
آس چه ورو درومِي په لاري    پرېواته ځني آفت دي
چه د سر بلا په پښو شوه    دا لا خير خيريّت دي
په دا هم شکر بايده دي    يو تر بل بتر زحمت دي
ما وِ تير شه ولي پوه شوم    لا څه پاتي مصيبت دي
ما وِ اوس خو مهربان شه    لا ئي ما سره شدت دي
هند په ما باندِ دوزخ شه    که په نورعالم جنّت دي
بنديوان ور لره راغلم    دا يو څو مياشتي فرحت دي
هغه شان لکه بندِي وم    ترِ م لا تيري محنت دي
هره ورځ ورتلل دربار ته    کوره دا څه مشقت دي
د بل حکم پرِ زندان شِي    چه پرخپل حکم عادت دي
نه شيرين شيرين ياران شته    نه له چاسره صحبت دي
نه خپل ورکړل دانيول شته    نه خپل حکم حکومت دي
نه د ښکار هوا هوس شته    نه د نورڅه مصلحت دي
يو په بل پوښتنه نشته    هسي ښهر بد خصلت دي

په شماره یو څو سرِي دِي — چه ئي جور را سره نيت دی
یو اکبر په غم شریک وه — هغه هم په خپل عشرت دي
که بادشاه دي که خانان دِي — را ښکاره ئي حال حالت دي
د هیچا برکت نشته — ثان ثاني شوه قيامت دي
ما چه دا قصیده وُوِ — په ډیلي مِ اقامت دي
څلورمه د رجب وَه — زر اووه اویا هجرت دي

نورڅه مه وايه **خوشحالَ**
که څه وايي قباحت دي

ددانا په حال نادان کله خبر دي — چه په خپله ناداني کښ اوتر دي
د لیچن په سترګو وڅلیده ستورِي — وعالم ته ئي لغري وکړِي چه نمر دي
دا داغونه چه مِ ایښي په جګر دِي — خو هم ما زده چه مِ پوخ څني جګر دي
که څوک خپلي سترګي وساتِي غم نشته — چه په زړه تندر پریباسِي خپل نظر دي
خداي دِ هیڅوک په دنیا کښ عاشق نه کا — عاشِقِي په خپل صورت باندِ لښکر دي
لیوني زړه مِ پرون په خندا لاړ وه — راشه ګوره چه نن بیا په ژړا سر دي
چه د فکر مرجونړا له بحرَ وکیښ — راشه ګوره د**خوشحال** کلام ګوهر دي

له غمونو به خلاص نه شي د غم خويش يي
که بدګوي و بدآموز و بداندیش يي

مه بدوایه مه بد آوره مه بد وینه
درویشي دِ مبارک شه نور درویش يي

ستا په زخم به دارُو مرهم نور کېږي
که په ځان دارُو مرهم د چا په ریش يي

که دِ ځان پخپله شمار تر هر چا کم کړه
نور ځما په پوهه ته تر هر چا بیش يي

یا به دَد یا به منګور یا به لړم يي
که دا رل کړي یا چیچل کړي یا په نیش يي

په خپل دین نظر لره دینونه پرېږدِه
څه جاسوس د چا د دین د چا د کیش يي

که هر څو د رڅني عیږم بدخويَ
نه په هره کوڅه بیا و ما نه پیش يي

په کردار توره مشکنزه يي **خوشحال**
په ګفتار ســـره د سپینو درو ویش يي

که بادشاهان دِي که درویشان دِي
که په دا مینځ کښ ښه ښه ځوانان دِي

که په زرګونو کالونو پـــايي
عاقبت وار د ګورستان دِي

# چمن بی نظیر

یعنی

قسم قسم غزلونه د دېرو شاعرانو

صدرخان — ابوالقاسم — قلندر — خواجه محمد

کامگار — خوشحال خان — عبدالحمید — عبدالرحمان — عبدالقادر — محمدی

احمد شاه — سکندر — صدیق — حسین — علیم — یونس — ابراهیم — کاظم — عصام

شیدا — فاضل — حمید — مصری — معز الله — دولت — غفور — عثمان — صمد

پیر محمد — فتح علی — عبدل

اشرف — معین — فضیل — دوست محمد

# چمن بي نظير

که فلک وکړي ګردش په کام ځما — کُنډ ګښیوزي دا آهو په دام ځما

اورِم بل په هر اندام د اشتیاق شي — چه جلوه کړي هغه ګل اندام ځما

ماچه وصل په هجران ګښ د یار بیاموند — په رڼا ورځې بدل شه شام ځما

لکه نقش د نګین په نګین ډوب وِي — هسې ډوب شه په ګوښه ګښ نام ځما

زه چه تل مخموري سترګې د یار وینم — ډک په میو د عشرت شه جام ځما

ترابدَ سنا د وروځو و محراب ته — شه خصلت رکوع سجود قیام ځما

چه دولت د بیخودئِ **معزالله** راغي
مملکت دي د بنادئِ مدام ځما

په درياب به څه رنګ ترشِي کام ځما — چه نسکور لکه حباب دي جام ځما

د نګین عالم خبر ورځني نه دي — هسي ورک شه سنا په غم کښ نام څما

د ذرّي په شان مِ تاب د آفتاب سوځي — هیڅ سبب د راحت نه شه بام څما

د لاغر صید له شرمَ هسي آب شه — چه سرسبزه کړه دانه ګل‌دام څما

صبح و شام مِ کړه همرنګ سیه روزئ — خکه نشته چري صبح و شام څما

د سیماب په شان ئي نه موم بي مرګ — د حیات له لاسَ ورک آرام څما

ستاد مبني راز مِ هسي پوشیده کړ — چه په تا نه شه خبر سلام څما

په ګلشن دي **شیدا** بیا پرتو د صبح
که په سپین لباس کا زیب ګلفام څما

ساقي زر پاڅه و ما آبِ حیات را — ورپسي نُقل د سرو شونډو نبات را

آزادي مِ خوښه نه شوه له دي پسَ — څما پښو لره زنځیر د عشق حمات را

که هوڅو د هجر غم رابانِدِ دیر شي — لکه غر د یار په مینه کښ ثبات را

نوکرِي دِ کرِیمِ دنیا مِ پکار نه ده — یارَ ما لره د خپل دیدن برات را

غیر فکر مِ له دلَ زدوده کړه — خیال په زړه د یار د مخ لکه مرآت را

په کمال چه دي نصاب دِ ثنا د حسن — مستحق یم آشنا ما لره زکوٰت را

ربّ دا آرزو **کامګار** لِري په زړه کښ — چه هرچا ته وِي یک سان هغه صفات را

کونړ او روند کړي هسې شان د نس هوا
چه لري سره دوا او ناروا

شوخ بې شرم کړي حرص تر هسې حده
چه نه شرم کړي له خدایه نه پروا

چه د نس په زېرمه خداې درځخه هېر شه
دا له چا شوي وابسته له چا سوا

نه به ته دا سرکښ نس په بدو موړ کړې
نه به ړشي زهر قاتل د چا دوا

څو طیار خوان و الوان درلره نه شي
په یوه طعام دې نه یخېږي خوا

وړي هزار تاروه تارخه د ناکسانو
وایه ولې په یوه نمړۍ حلوا

چه طلب درځخه نس تارخه تاروه کا
زېرموي صبا حلوا بېګا ښوروا

په حیا کښې سړي وږي تږي ښه دي
نه به شهدو شکر موړ په بد رسوا

چه په سوال اوږدوي لاس چا ته حمید
ښه لي وږي لاس ترخني بې نوا

هیڅ په عقل په تدبیر نه دې نصیب
چا ترلې په زنځیر نه دې نصیب

ستوري والوزي که هر څو نمر به نه شي
د بادشاه بخت د فقیر نه دی نصیب

په سینه کښې م زړه ښه درته تل دي
د کوږو بڼو سنا تیر نه دې نصیب

د تصویر غنچه په باد ګل شوي نه ده
چه هوس د زړه زهیر نه دې نصیب

سنا د زلفو ډُري ډېر ډېر کا زړه سم کړه
لا د سپي غماز تعزیر نه دې نصیب

پتنګ هسي ځاي د شمعي لنبي وسه
چه د چا له خولي يئ وير نه دي نصيب

چا ته ووايم د غم له بدَ حال
چه د مره د خولي تقرير نه دي نصيب

باد څه دُوره دَه په موټي کښ راوړي
د حباب د کور تعمير نه دي نصيب

ستا په زلفو کښ دا بند زره غواست له چا
چه خلاصي د دي اسير نه دي نصيب

د ښزو قلم څما په اوښو لوند دي
لا د غم د حال تحرير نه دي نصيب

ستا د نوم آخسته خوله د تصوير غواړي
خو دا کار ئي له تقدير نه دي نصيب

کوم يو سيخ دَه د لاله سينه داغلي
چه مرهم ئي د ضمير نه دي نصيب

**محمدي** اوښي م غم په مخ جاري کړي
ودريده د دي بهير نه دي نصيب

که د ښکليو د ديدن لري مطلب
مقيّد ئي په طلب شه روز و شب

شهد و شير قند به دِ واړه فراموش شي
که يو ځل شي له محبوبَ لب په لب

د دلبر وصل منصب جاوداني دي
صدقه تر دا منصب شه بل منصب

د وصال قدر پوښتنه له مهجورانو
څه پروا د اوبو کړي د وچي کب

د دلبرو په ديدن عاشقان پائي
نور ئي هيڅ د ژوندانه نشته سبب

ښه متاع له هر دکانَ چه وِي ښه دُ
د معشوق پوښتنه مه کړه د نسب

د عاشق دعا که و لغوړي ښښتنَ — مبتلا کړه رقیبان په خپل غضب

مړینو له ټېښته شرم دي یونسَ
د نصیب له پېښي ماړوه جلب

نن مِ ولیده په سترګو هغه یار مست — سم په لاري نه کا تله هغه مي‌خوار مست

په مستئِ ځما د مینې واړه مست شو — کور مِ مست محلّت مِ مست کوڅه بازار مست

شیخ ځما د یار د لبو شراب نوش کړه — دي پر مست شه خرقه مسته هم زنار مست

د مستانو مجلس هسې مکان غواړي — چمن مست عمارت مست نقش و نګار مست

د مستانو په مستئِ چه زړه نشاط کا — ویل مست کا کتل مست کانږ هر کار مست

بوندي سترګي چه راپورته په مستئِ کړي — ما کا مست روزګار کا مست در و دیوار مست

زه هم مست د دلبر مِ مست د ګلو سیل کړو — ساقي مست شرابي مست هم لاله زار مست

په مستئِ ځما په رقص فلک ګډ شه — مطرب مست چغانه مست دف و مزمار مست

د صدیق مستي پواځي د ځان نه ده
قلم مست قلمدان مست لړي اشعار مست

ستا په دور ګلستان شه له ما پاتِ — سیر د ګلو د بوستان شه له ما پاتِ

په ژړا کښې مِ زړه نرم لکه موم شه — هغه سخت خاطر سندان شه له ما پاتِ

| | |
|---|---|
| له ثالبَ مرور شه راشـله نه کا | په کوڅه کښ د يار څان شه له ماپاتِ |
| هسي شان شوم په هجران کښ بي طاقتَ | آه فرياد ناله افغان شه له ما پاتِ |
| د مجنون په دود مِ څاي په ويرانه شه | کور و کلي خان و مان شه له ما پاتِ |

زه غنچه غنُدِ خندان ورڅني لاړم
افسوس د **کاظم** گريان شه له ما پاتِ

| | |
|---|---|
| چه راپيښ د يار بيلتون شه الغياث | څما زړه له غمَ خون شه الغياث |
| دوصال ساعت به څه گوري په سترگو | چه پيدا غمّاز زبون شه الغياث |
| د آهو په دود د هجر له دهشتَ | څما څاي په ميرتون شه الغياث |
| اوس په عشق کښ دهجران له ډېر غمَ | په عذاب څما ژوندون شه الغياث |
| د غمّاز د بدنيتيِ د سنگ له لاسَ | ړک د وينو مِ لړمون شه الغياث |
| په سبب دکاهليِ د خپلي بخري | په عتاب راته گردون شه الغياث |

**فتح علي** هوس به څشکل کيدي شي
جام د بخت دِ سرنگون شه الغياث

| | |
|---|---|
| ستا په هجر کښ بي‌تاب يم الغياث | لکه موج په اضطراب يم الغياث |
| په وجود کښ مِ اثر د بقا نشته | وفنا نه جوړ حباب يم الغياث |

پیچ و تاب وته د زلفو دِ نظر کړه
زه هم هسي پیچ و تاب یم الغیاث

په سیلاب سره همیش دخپلو اوښو
د صورت خانه‌خراب یم الغیاث

چه نه مرګ وِي له جفا نه وفا موم
له دي عیش په عذاب یم الغیاث

په غمزو مِ د دلبرو زړه غوڅ شه
په نغمو سوي رباب یم الغیاث

د ناصح و نصیحت ته مِ غوږ نه دي
مست د میني په شراب یم الغیاث

په تحریر د عشق غمونه نه طي کیږي
درمانده ئي په حساب یم الغیاث

چه آشنا د یار د غم زه **پیر محمد** شوم
د حسرت په اور کباب یم الغیاث

که ښبنتن شي د دنیا د تخت و تاج
غرّه مه شه عاقبت به شِي تاراج

پس له مرګ به همه سره یکسان شِي
که ګدا که مهاجن وِي که مهراج

چه آخر به ښي له تورو خاورو لاندِ
د دنیا په چارو مه کړه ابتهاج

د اجل په سنګریزو سره به مات شِي
که هر څو وساتي لوښي د زجاج

که حاجت روا کوي د حاجتمندو
تا به نه کا خداي هرګز د چا محتاج

چه آشنا دربانِ پیش شِي لوي همت کړه
چه دِ جور دي دا پنځه ورځي مزاج

ښائسته کړه خپل ایمان په عمل باندِ
بي زیورَ ناوي نه لرِي رواج

دا سباهي به دِ همه له زړه بيرون شي
که دِ بل کړ اندرون دعشق سراج

هغه چاري چه د عشق په جذبه کيږي
کله کيږي په لښکرو پـه افـواج

که عاشق په صورت وورکي په زړه لوي دي
څه يکاردي بيهوده صورت د عاج

عشق رسوا کړه په دنيا او په عقبیٰ کښ
يو مجنون دويم منصور بن حلاج

په ځنګل کښ ښکارېږي څه ځئ خبروه
که په زور آواز نه کښېلي دراج

له کسرئ د عدالت نامه شوه پاتي
دا د ظلم داغ شه پوري په حجاج

د دنيا د تنستي بوده نيمګړي
په هيڅ رنګ به ئ پوره نه کا نسّاج

که عاشق ئ له ظمتَ مه ويريږه
د هرچا د پيغورونو شه آماج

د خواجه محمّد ګناه وخداي ته څه دي
د کرم بحر ئ دروِمي پـه امواج

څکه بردم قدم د ښکليو په دلبار کج
چه مخمور ګوزِي په حال کښ دخمار کج

دکبرو يکرو څښتن خاکِ سياه کا
چه دلبر د زلفو تار کا په عذار کج

کجي زلفي کج مژګان لويه فتنه ده
لا ئ ګوره چه دلبر کا ندِ دستار کج

د زړه فکر مِ د يار په ليده ورک شي
لکه جوړ فکر د کور شي په بازار کج

د رقيب له ويري هسي يار نه دروم
لکه مات دچا په پنبه شي تيرِ خار کج

که

که دستار په تندِي کج بِدمَ کرم نه يم
خوندِي تل وِي د بلبل په نوبهار کج

د کبرو ورخو غوغ کړي مدام زارِي
ولي سخت وِي د کبرِ نوري پرهار کج

که عاشق له هجر پرمخ پروت وِي بنائِي
روغ صورت د مينا تل وِي په خونبار کج

که **غفور** له خلقو بيل شِي باک ئي نشته
تل آواز د روغو لِکي په بيمار کج

د وفا طمع کوي له اعدا پوچَ
په بتانو پسي کړي اقتدا پوچَ

چه په کنج د حسن ناست وِي هغه ښکلي
ور ښکاريږي د عاشقو غوغا پوچَ

سر يکار ئي شه هميش له جگر خونَ
چه ئي شوه د يار په در کښ دعا پوچَ

زه چه غوغ شوم د چشمانو په مصرئِي
اوس مِ زيرمه ده د درد د دوا پوچَ

چه د عشق په تجارت کښ بهرمند شِي
هغه وګڼِي د هرڅه سودا پوچَ

ګل په وقت د صبحدم کښ پروا نه کا
بلبلان که ورته کاندِ ژړا پوچَ

چه د عشق په ميخانه کښ مستانه شِي
هغه ګورِي ودانِي د دنيا پوچَ

خو هم د عشق په لاري کښ تورنم دِي
صبورِي ورپسي بيائِي رنړا پوچَ

هميشه کاندِ رفتن په قرار نه دي
اي **عليم** ده د عمر بقا پوچَ

سنا ترلب لعل و گوهر هیځ
سنا تر زلفو مشک عنبر هیځ

حجاب واچوه له مخ
آفتاب محو کړه قمر هیځ

خریدار چه ئې بې نیاز ويِ
د چشمانو دُر گوهر هیځ

چه د عشق بدرقه نه وي
په خوځواره لار سفر هیځ

بې له یارَ څه اختر کا
د بي درد عالم اختر هیځ

سنا ترقدَ تر قامتَ
صنوبر چنار عرعر هیځ

سنګین زړه دِ نرم نه شه
په ژړا ځما احقر هیځ

د عشق یو سبق کافي دي
نور د کُل جهان دفتر هیځ

سنا گفتار صدرِ خوشحالَ
کان دکان کړه د شکر هیځ

زه زیریږم سنا له غمَ تر صباحَ
نه ناترس په پهلنګ خوب کوي تر راحَ

د هجران په درياب ډوب یم غرغړي کړم
جګي جګي لاس را واچوه ملاحَ

نیکوکار عالم وفا کا جفا پریږدي
ولي خوند د حنظل نه شي له تفاحَ

نه مِ ځان لي بي تا مرم خود پوهیږي
جدائي د تن مشکله له ارواحَ

لا به کله سنا د خولي په جام سیراب شم
شيه او ورځ مِ دغه خواست دی له فتّاحَ

ستا د حسن لونړیو لاس په تاخت کړ — بې پروا کوزې له صلح له صلاحَ
هزار شکر که بندې یم ستا په زلفو — په دا هسې بند کښې خوښ یم تر فلاحَ
د دروغو په وعده هزارداستان یې — په ربښتیا دِ غنچه خوله نه کړه مفتاحَ

**اشرف** ستا په مینه مست دې لا به مست شي
په خندا که سپینه خوله کړې ورمباحَ

که بوخل شي مخامخ د یار له مخَ — نور به نه کا رقیبان درباندِ رخَ
لا به کله خدای په ما د وصل داد کا — چه پوره کړم په رقیب د هجر سخَ
د رقیب له بدخوئ مِ یار بدخوی شه — روغ سرې پمنوې د پېمن پخَ
اندېښنه مِ د ناموس له خلقَ نه شي — د یار ډېرې حیا شوخ کړمَ تر ملخَ
خپل ویښته د یار دراز په لطافت کښ — چوله کیږې په عاشق لکه ښخَ
چه سپې توب د عاشقئ راځخه نه ځي — ځکه شم باله شاړه په تو په چخَ

که پرې ښئ شم که بدې شم ناصحَ
خدای کړ عشق څما **حمید** په مخ کښ زخَ

مه کوه د دښمنانو په مرګ سخَ — د دوستانو دِ هم دا دہ لار په مخَ
له هرچا سره سینه کړه خپله صافه — مه له چا سره حسد کوه مه زخَ

تربیت په نااهلانو حبطه وي
وریژه نه شي د دهقان په زور شنځ

له کمین به بي بدو ښه وانه وري
همیشه له کنجي سره زړي پخ

پریکول يې درد لري پريښول يې عيب دي
ناخلف دي د پدر په مخ کښې زخ

سنا د خيال وسليمان ته مِ ځان ونيو
د مېرېږي په لاس کښې هيڅ نشته بي ملخ

**معزالله** لره طناب د زلفو ورکړه
چه پرِ ووځي له کوهي سنا د زنخ

د مجاز عاشقي عينِ حقيقت دَ
و هغي ته زينه اينبي د صورت دَ

تر ثرا تر ثريّا که فهم وکړي
په خلوت کنجَ غوغا د محبّت دَ

په جهان به هيڅوک نه وُو که عشق نه وي
دبدبه د عشق قايمه تر قيامت دَ

چه په مينه کښې يک دل و يک زبان وي
تر هرچا د هغو چار په برکت دَ

دا يوه وينا د زړه په غوږو واوري
چه بهتره د اورنگ تر سلطنت دَ

سر دِ دروي مال دِ دروي پت دِ نه ځي
د سري د چارو کُل خوبي په پت دَ

چه يو ځلَ زړه د چا په مينه بند کړي
په شلول ځني کي دَ مروّت دَ

چه د نيّت غَلَطي لري بلا به ورشي
تر هر څه بده بلا غَلَطي د نيّت دَ

چه يې خداي ورکا وچا شکر دِ کاندِ
په جهان کښې لويه بخره د همّت دَ

په تېره الماس د پاس قدم ایښي	یوه څه باریکه لار د شریعت دَ

چه کښېږوته نصیحت وايي **خوشحالَ**
وایه کومه فایده ستا د نصیحت دَ

ولي نه یي راضي منډ په هغه سود	هغه سود چه همیشه لري بهبود
تمامي قباحت دا دي که باور کړي	چه مرید له خپلَ پیرَ شي مردود
چه دِ یو زمان جدا نه وِي له دلَ	په معنیٰ کښ هم دغه شه ستا معبود
په هر لوښي کښ چه څه شي راڅولي	عاقبت شي بیا هغه څني نمود
د مسلم نشانه څه ده بندگي دهٔ	د اخلاص طاعت به کله کا جهود
دهغه له یادوځه له فراغت شوي	چه تر تا نه تل وتا نه دي موجود
جدائي څني ذرّه د یار و مه کړه	که هرڅو دِ شي اندوه په زړه افزود
سلامت نه سلامت بخښلي خداي وِي	څه شي اور نه خلیل واچاوه نمرود

نه تل مي د محبّت نوشه **صدیقَ**
په دا څه شي محتسب که وِي حسود

لکه خوښ شي څوک د زرو په کاغذ	زیات تر زه شم د دلبرو په کاغذ
د دلبر د خط سیاهي مښک وعنبر دهٔ	سم خوشحال د مښک عنبرو په کاغذ

